داشرف خان هجري د درې سوم تلين

١١٠٦ - ١٤٠٦ هـ ق

# د زنځيرونو شاعر

اشرف خان هجري

زرین انځور

داشرف خان هجری دری‌سوم‌تلین
۱۱۰۶ - ۱۴۰۶ ه.ق

# دهجری ژوندلیک

لیکوال

زرین انځور

خپروونکی

## دافغانستان دعلوموا کاډیمی

د ژبو او ادبیاتو مرکز

پښتوټولنه

۱۳۶۴



# دهجری دژو نداو شاعری دغه انځور

داشرف خان هجری (یو زرو خلورڅلو یښتم ـ یوولس سـوه شپږم هق) دژو ند پیښی او شرح حال په‌با ب په‌زړو متو نو کی‌مشخص او ځانګړ ی کوم اثر نشته. تاریخ‌مرصع( یوولس سوه دروښتم ـ یوو لس سوه شپږ دیر شم ه.ق) یوازینی کتاب دی چی دد غه‌کتاب له خورو ورو بحثو نو څخه‌داشرف‌دژو ند او شرح حال یوه ښه‌خاکه برابرید لی شی . اما دغه کتا ب ډیرورو سته دچاپ ډګر ته راووت(۱) داشرف دیوان ، چی پدی بـر خو کی‌ښه‌سند دی هغه هم وروسته چاپ شویدی (۲) نو دده د ژوند‌پیښنو او سخنور ی په باب ددغو

لومړي

دوو کتابو نو اوددی کتا بو نو په استناد دکښېل شوو نورو اساسي اسنادو تر عا میدلو او هر چاته تــر رسیدلو دمخه د پښتو ادب دمحققینو او د اشرف دشرح حا لکښنو نکو اتکاء زیاتره د میجر ها ورټي جار ج راورټي ( اتلس سوه پنځه ویشتم ــ نو لس سوه شپږم ع) په کارو نو وه.

نوموړی راور تي چې په اتلس سوه شپیتم ع کال له هر تفرده د ګلشن روه مجموعه خپرو له نوي دغه کتا ب دنظم په بر خه کی د هجری پنځه و یشت پاڼ کی خپاره کړل (۳) او چی په همدی اتلس سوه شپیتم ع کال کی یی خپل پښتـــو ګرا مر دو هم ځل چاپاوه ، نو یی ددی کتا ب په مقد مه کی د هجری لنډه یادونه وکړه (٤) خو کله چــی یی د سیلیکشن فرام ده پویټ ری اف ده افغا نس په مجمو عه کی د ځینو پښتو شا عرانو د منتخبــ واشعارو انګریز ی تر جمی ددو ی لهلنډ شرح حال سره راوړ ی ،نوی ی ددغه کتا ب داشرف خا ن خټک په برخه کی (٥) پر هجر ی بنا یسته دیادو نی وړ بحث وکړ، چی دده د ژو ند پیښنو په خیر لو کی هما غه وخت ارز ښتمن بحثونه وو، راورټی په دی لنډ شرح حال کی داشر ف پر ژو ند او شا عری دنورو اجما لی خبرو تر څنګه دده دژو ند عمده تاریخو نه داسی ثبت کړل: هجری په یو زرو څلور څلویښتم ه.ق کال وزوکید ، په یو زرو دری نوی یم هق کال بندی شو ، په یو زرو پنځه ـ نوی یم هق کال بیجاپور ته ولیږدو ل شو، په یوولس سوه پنځم هق کال ومړ. دخپلـ ی لیکنی په پای کی یی دا خبره هم زیاته کړی ده چی دهجری مړ ی افضل خا ن له بیجا پور ه سرای ته راو ړی دی (٦) دا چی دراور ټی دغه خبری څومره سمی دی داځانته مسا له ده، خو تر هغی چی دهجری دژو ند او شا عر ی په باب اساسی اسناد محققینو ته وړاندی کیدل ، نو لر اوبر او هــــــم د دمستشر قینو په حلقو کی داشرف خان هجری دژو ند او شا عر ی او

دوهم

شعری نمو نو په خصو ص کـــی عمده ماخذ هما غه دراور تـــی آثارو و.

په لره پښتو نخوا کی ز ما د معلوما تو له مخی په نو لس سوه دری دیرشم ع کال په خیبر میگزین کی (۷) دهجری په باب څه یادونی خپری شوی او په بره کی له نن نه پنځو س کاله دمخه لوی استا د علا مه حبیبی ( دیار لس سوه اته و یشتم ـ څوار لس سوه څلورم هق ) په تاریخچه شعر پښتو کی (۸) دهجری په باب څه وکښل او بیا په لسگو نو منابعو کی چی دهجر ی په با ب څه لیکنی خپر ی شو ی دی یوی له بلی استفاده کړی ، خو اصله منشا یی هما غه دراور تی دری یاد شوی کتابو نه دی.

کله چی د مر حوم استاد کا مل مو مند ( دیار لس سوه نه پنځوسم ه.ش مړ) مغتنم کتاب ( خوشحال خا ن ختك) خپور شو ، نو دوی د تاریخ مر صع او نورو منا بعـــو له مخی دهجری په ژوند ، نیو ل کیدو، له خوشحال خا ن سره په روابطو او نورو حالا تو مفصـــل معلوما ت وړاندی کړ ل ، داستاد کا مل دڅیړ نو له مخی داروښا نه شوه ، چی هجری په یوزرو څلورڅلویښتم هق کال زوکړ ی دی، په یو زرو دوه نوی یم هق کـــال نیول شوی او په یوولس سوه شپږم هق کال مړ دی، اودبند یو له موده یی څوار لس کاله وه (۹) زمو ږ په لو مړ نیو معاصرو تذکرو او ادبی تاریخو نو کی راغلی وو ، چی هجری لس کاله بندگاللی و . بیا چی د پښتو ژبی دنو میالی لیکوا ل ا و شاعر همیش خلیل په همت دهجری دیوان چا پ شو، د دیوان په مقدمه کی هما غه داستاد کا مل خبر ی چی هغو ی په اردو ژبه راو ړ ی وی دوی په لږ تفصیل اواضا فه په پښتو راوړ ی

ددغو دوو کتابو نو له چاپ سره دهجری په با ب دراور تی له آثارو داستفادی اړه تر زیاته حـــده رفع شوه اود تاریخ مر صع چاپ دهجری

در یـــم

په‌با ب دخيړ نو لار نوره هم پسې‌روښانه او ښه‌کړ ه . تــــر دې ورو ستـه چې دهجر ي په‌با ب‌څه‌کښل شو ي دي ، زيا تره‌په‌باوري منا بعو متکي دي اودمعلو ما توساحه‌يې هم و سيع ده ، لکـــه د علامه لوی استاد پو ها ند حبيبي ليکنې‌په(( دپښتو ادب په‌تاريخ کــــی قصيده ) کې (١٠) داستاد رښتين‌ليکنه په‌وږ مه (١١) کې دمر حـوم استاد عقا ب خټك (ديار لس سوه‌دری شپيتم هش مړ) ليکنې په خوشحاليا ت(١٢)کې، دسترافغانی‌محقق فاضل استاد پو ها ندرشاد ليکنې دگلشن روه په مقدمه‌کې(١٣)اودمرحوم استاد عبد الروف بينوا (ديار لس سوه دری شپيتم هش‌مړ)ليکنې په ( دافغا نسنا ن‌نوميالی) کې (١٤)چې دغه لوړ ی ټو لی‌ليکنې‌دنوو معلو ماتو پر بنا کښل شوی دي.

که‌څه هم د هجری په‌باب دغسې‌ښې خو متفر قې ليکنې موجودې‌وې مگر مستقل اثر دد غه قادر الکلام‌شا عر په ژو ند پيښو ، آثا رواو دشعر په خصو صياتو نه‌و کښل‌شوی ، اودی کار ته يو مبـــــرم ضرورت محسو س‌و .

کله چې په ديار لس سوه يو-شپيتم هش کال کې دهجر ی د دری سوم تلين دنمانځنې له‌پاره‌دآثارو کښل او چاپيدل منل کيد ل نو د سيمينار علمی سکر تر يت‌دهجر ی دشر ح حا ل د کښلو ا و چاپيدلو دضرور ت مو ضو ع هم‌دسيمينار علمی کميسيو ن ته‌وړاندی کړه ، کميسيو ن دغه ضرو رت ،تاييد کړ او ورسره يې‌دسيمينار دسکر تر يت په غو ښتنه ددغسې‌يوی رسا لی دکښلو چار ی دپښتو ژبې ځوا ن او مستعد ليکوا ل‌ښاغلی‌زرين انځور ته وسپارلی . ښاغلی انځور له هما غه‌و خته په د ی خصو ص کی خپله مطالعه جا ر ی ساتلی وه، دروا ن کال دميزا ن‌په‌خلورمه چې بيادسيمينار علمـــــی کميسيو ن د سيمينار د علمـــــی‌کارونو د گړ ندی تو ب او ښه‌والی

خلورم

په منظور غونډه وکړه ، پهدیغونډهکی بیاتایید شوه، چی ښاغلی انځور دی خپل کارته دوام ورکړی، اورساله دی دزیری په جریده کی ترقسط وار خپرو لووروسته دسیمینار د علمیسکر تریت نرنظر لاندی پهکتابی شکل هم چاپ شی . دسیمینار علمی سکرتریت دسیمینار د علمیکمیسیون پریکړی په رسمی ډول ښاغلی انځور اودزیری جریدی تهولیکلی ، دواړو خواوو خپل تیاری وښود ، رساله تیاره شوه ، او پهزیری کی تر خپریدلو وروستهبه دا شرف خان هجری ددری سوم تلین بین المللی ځیرن غونډی ته پهکتابی شکل وړاندیشی.

په دی رساله کی ښاغلیانځور دموجودو منابعو په اتکاءد هجری دژوند او شاعری یو انځور را ایستلی دی ، او ښه یی ایستلی دی. د هجری د ژوند او شاعری دغه انځور به دآینده پراخو څیړنو له پاره دیواسا سیپه توګه د کار په دی ساحه کی لومړنی منسجم کار وی چی راتلونکی به دنوو څیړنو او نوروومنابعو پهپیداکیدو سره ډیر څه پر بناکړی، دسیمینار علمی سکرتریت ویاړی چی دهجری د دری سوم تلینګډون کوونکی او نورو مینه والو ته دهجری پهژوند ، آثارواو شاعری یوه ګټوره رسا لهوړاندی کوی، او ورسره درسا لیځوان لیکوال ګران انځور ته هم مبارکی او ورسره کور ودانیوایی چی ددی رسالی په کښلو یی دد سیمینار په در نښت کی بر خهوا خیسته ، دزیری جریدی د ګران مدیر ښاغلی نصرالله ناصرهخه هم مشکوره ده ، چی دغه رساله یی په زیری کی خپره کړه، او ترتیبو نه یی په سا لمډول دسیمینار دعلمی سکرتریت پهواک کیورکړل.

**مراجع:**

۱ ـ تاریخ مرصع دافضل خان ختک ، دمرحوم استاد دوست

پنځم

محمد خا ن پەزيار ددو ی لەمفصلوشرو حو تعليقاتو او علمیسريزی سره په نوالس سوه خلور او يايمع کال ديو نيورستی بك ايجنسی له خوا په پيبنور کی چاپ اوخپورشوی یدی .

۲ ــ دهجری ديوا ن د دريوخطی‌نسخو له مخی دگرا ن هميش‌خليل پەزيار تهيه اودده له مقد می‌سره‌پەنو لس سوه اتەپنځوسم ع کا ل لەپيبنور ه چاپ او خپـــــــو رشو.

۳ــ گلشن روه ( يوسلو يو ــ‌پنځوسم او يو سلو دوه شپيتــــم مخو نه) دهانری جار ج راوز تی‌داتلس سوه شپيتم ع کال دلند ن چاپ.

٤ ــ پښتو گرا مر دراور تـی‌نهەويشتم مخ د اتلس سوه شپيتم‌ع کا ل‌دلند ن چا پ دد غه گرامر‌يوەنيمگړی نسخه په اتلس سوه‌پنځه پنځوسم ع کال پەکلکته کی هم خپره شوی‌وه.

٥ ــ سلکشنز فرام ده پويتری.. دهجری شر ح حا ل دوه سوه نهەځلويښتم اودوه سوه‌پنځو ســـمخو نه ، پاړ کی دوه سوه يو ــ پنځوسم او دوه سوه شپيتم‌مخونه،داتلس سوه دوه شپيتم ع کا لند لند ن چا پ. دغه کتا ب دو هم‌ځل‌په اتلس سوه اوه شپيتم ع کا ل بياپه لندن کی چاپ شو یدی.

٦ ــ دراور تی دغه خبره کو م‌اساسی سندنه لری ، ځکه پەتاريخ مرصع کی چی د هجر ی دمرگ‌کوم‌بحث را غلی دی، هغه کی دی خبری تەکو مه اشاره نشته.

۷ــ دغه منبع لوی استا دعلا مەپو هاند حبيبی په خپله مقاله کـــی ښودلی ده (طلوع د ديار لس سوەځوار لسم هش کال لسمەشماره)

۸ــ طلوع افغان د ديار لس‌سوەځوار لسم هش کال دقو س‌لومړی، دديار لسم کال لسمه شماره ، تاريخچه شعر پښتو دقند ها ر چاپ.

شپږم

۹ ـ دهجری دبندکالونه پـــه‌زیاترو منابعو کی لس ښوو لشوی دی، اما داستاد کا مل دتیر یا د شوی کتا ب تر خوریدو ورو ستنه داظاهره شوه چی هجری ځوارلس کاله‌بندی‌و .داچی عثمانو ف په خپل کتا ب خو شحال خا ن اودده‌ادبی مکتب یوسلو اوه‌ویشتم مـخ کی دغه امتیاز ښاغلی همیش اودهجری ددیوا ن مقد می ته ورکړی دی. سمه خبره نه ده .ها امتیازدمر حوم استاد کا مل دی چی په خوشحا لخا ن ختټک کړیی د هجری دحبس دوره ځوار لس کاله وښودله.

۱. ـ دپښتو داد ب‌په تاریخ کی‌قصیده دلوی استاد علا مه پو هاند حبیبی ځلور اتیایم‌ـ دوه نوی‌یم مخو نه ، ددیار لس سوه شپږ ـ پنځوسم هش کال چا پ‌ددیار لس‌سوه اووه پنځو سم هش کا ل. خپرو نه ،پښتو ټو لنه .

۱۱ ـ وږ مه ددیار لس سو ه ځلویښتم هش کال‌لومړی ـ دو یمه شماره دیر شم ـ شپږ پنځو سم مخو نه ،دمحترم استاد پو ها ند رهښتین مقاله .

۱۲ـ خو شحالیا ت دمر حـــوم‌استاد سر فراز خا ن عقاب ختټک اته‌و یشتم ـ اووه دیرشم مخو نه‌دنو لس سوه پنځه اویایم ع کا ل دپیښور چاپ.

۱۳ ـ دگلشن روه ، دریم چـاپ‌دیار لس سوه شپږ پنځو سم هش دفاضل استاد پو ها ند رشـــادمقدمه.

۱٤ ـ دافغا نستا ن نو میا لی استاد بینوا ځلور سوه شلم مخ ،د دیار لس سوه شپږ پنځو سم‌هش‌کال چاپ.

**احقر العباد ،ز.ه.**

# فهرست



اتم

# دسر خبری

اشرف خان هجری زموږ دکلا سیکو ادبیاتو یوه ډیره نا متو او
ارز ښت ناکه څیره ده. د هجر ی ژو ند له‌یوی خوا زموږ دلوی‌او طن
دتاریخ دپاڼو له پاره اودهجـــر ی‌شاعری له بله پلوه زموږ دغوړیدلی
او سمسور فر هنگ دادبیاتودتاریخ‌له پاره دزیات لټون او زیاتی څیړنی
څېړکی دی.

داشرف خان هجری ژو ند پــــه‌ټو له ما نا زمو ږ دادبیاتو دتاریخ
او زموږ دشعر دتاریخ یوه (( غـــم لړلی تراژیدی )) ده ان چې دنړی
دشعر په تاریخ کې به ددغه ډو ل ادبی او شعر ی تراژ یدیو نمونې

ډیر ی لړی وی. داهغه شاعرو چی‌خوار لس کاله د هند دمغو لی‌دولت داستبداد په زندانونو کی‌بند ی پاتی‌شو او هماغلته داستبداد پـه تورو جیلونو کی له خپلی کور نی‌له خپلو خلکو او له خپل گران‌وطن نه‌لری مړ شو.

داشرف خان هجری شعــــر داستبدا ددهمد غو تورو او خونړیو زندانونو په خلو رو دیوا لونو کی‌یو خپه شوی فریاد دی.د هجر ی خوږه او ښکلی ، خو غم لړ لــــی‌شاعری دخپل و خت دظلــم او د واکمنانو دتشدد او سخت ز ړ ی داوج‌نمونه او زموږ له اولس‌سره زموږ له خلکو سره او زمو ږ لــه‌ادبیاتو سره دهند دمغولی مستبد دولت دزور زیاتی دمعراج ننښه‌ده.

لکه زه دی په‌آتش دجور ور یت‌کړم
سزابیا مو می جابره شهــــر یاره !

((هجری))

دهجری دژو ند دهمد غــــــوڅا نګړ نو اود هغه دشعرو نویو لړ په‌زړه پور ی خصو صیاتو تـــه‌پا ملرنی ،دی ته اړ کړم چی‌د هغه په(( ژو ند او شعر)) خپله څیړ نه‌پیل‌کړم اوداځکه چ ی‌زمو ږدتاریخ او زموږ دادبیاتو په دغه نا متــوشخصیت لالازم کارنه دی شوی‌او په دی برخه کی اساسی څیړ نوتــه‌اړتیا لیدله‌کیږ ی. له‌نن نه څلــو ر کاله مخکی می داشرف‌خان هجری‌د(ژوند او شعر) په‌باب دد غه اثر په‌څیړ نه او لیکنه پیل وکړ .

نن د خوشحا لی ځای دی چی دلوی‌شاعر اشرف خان هجری د در ی سوم تلین په مناسبت دغه اثر په جلابڼه هم د «زیری » لـــه خوا

خپرېږي. لاز مه بولم چې دد غه اثر دچاپ دزمينې د برابرو لو په بر خه

کې د خپلو هغوتو لو دوستا نو دزيارمننه وکړم چې له ډولونو څخه په يو

ډول يې دد ې اثر په چاپ( او حتی د موادو په راپيدا کيدو کې) دزړه له

کومې مرسته راسره کړې ده.

په در نښت

زرين انځور

# دهجری دزوکړی اوژوند دوخت
# دحالاتو یوسقدماتی جاج

(( هر نفس په ما عاشور کــــه یزیدانو
گویازه حسین د(( وخت )) پــه کربلا یم »(۱)

داشرف خان هجری دزوکړ ی اوژوند زما نه دتورتم ،وحشت، زور زیاتی ،ویری اود جنگـ اومر گـ څهداسی دوران و چی دپرگنو دژو ند هره شیبه لهغم اوما تم نهډ کهوه.په دغهو خت کی نهیواز ی دا چید بیوز لو خلکو ژ وند لهبد مر غــیځخه ډکو. بلکی دقدر ت ښبتنا ن اوخپله در با ریان اوشته من همله‌ډولونو څخه پهیو ډول لهستو نزو او وحشت سره مخا مخ ووا په ټو له شاو خواکی دو حشت ا و ویر ی وریځی خپریوی .

کلهچی وغوا ړو دخپل پیاوړ ی شاعر ( اشرف خان هجری ) پــر ژو ند اودژو ندپرحالا تو خبر ی وکړو نولازمه ده چی په مجمو ع‌کی له دغو خبرو وړاندی دهغه دو خت‌پهباب اود هغه په خپله وینا(د هغه دوخت په کربلا) یولړ مقد ما تــیخبری وکړو اود همغه و خت‌ځینو سیاسی ،اجتماعی ، تاریخــــــی اواقتصاد ی ټکو ته اشاریوکړ و او په ډیر لنډ یز سره دخپلو اصلی خبرو په ارتباط دغه مسایل ځانته روښانه کړو.

---

۱ــ دیوان هجری . مر تبه:همیش‌خلیل .پیښور ،نولس سوه ا تـــه پنځوسم ع کال (خلورسوه نهم‌مخ)

دهجری دزوکړ ی مها ل دمغولودقدر ت داوج دوران دی .دادا سی وختدی چی دهنددمغو لی دو لـتاستبدا د خپلو ورو ستیو سختیوته رسیدلی دی.

((شهاب الدین محمدشاه جها نپه‌یوزرو اووه دیرشم هجری‌قمری کال‌کی په اگره کی دسلطنت پـــرگدی کیناست .( یعنی د هجر ی له زیږ یدلو اووه کاله وړاندی) دد غه‌باد شاه دسلطنت په دورا ن کی‌له هند څخه دافغا نستا ن شمال،غرب‌او شرق خواووته لښکر کشی‌وشوی او خونړ ی پیښبی واقع شوی. کابل‌اوشر قی سیمی تل ددغه‌شاهنشاه په‌لاس کی وی، خو په‌شما لی‌ډ رخو کی دمغولی واکمنی او دماوراءالنهر دشاهانو تر منځ شخړی روا نـــــی‌وی))(۲).

دشاه جها ن دسلطنت په دوران‌کی اوله هغه وړاندی هم له‌پښتنو سره د هغو واکمنانوچلنددغوروړو. دوخت دخا صو شرایطو له مخـــی پښتانه قو مو نه له‌یوی خوا پـــــه‌قبیلوی جگړو اخته‌وو او له د غـــو شخړو سره،سره دمغو لی‌واکمنی له خوا هم دهغوی دټکولو هڅی مخ په‌گرمیدو وی.

(( له‌شاه جها ن څخه ورو سته‌دهغه دځلورو زامنو تر منځ اخ‌وډب شروع شو . دده په ځلورو زا منو کی داراشکوه او شجاع یوی‌خوا ته او اورنگز یب او مرادبخش بلــــی‌خواته وو. دقدر ت نیو نی په‌دغـه جگړه کی او رنگز یب بریالی شو.ده خپل پلار چ ی‌د داره شکوه پلوی و، بندی‌کړ ،دارایی وواژه اوشجا ع یی‌ورك کړ.

---

۲ ــ تاریخ افغا نستان در عصر گورگانی هند .عبد الحی حبیبی ، کابل دیار لس سوه یوځلویښتم ش‌شپږ اتیایم مخ.

له مراد بخش سره هم وران شو .لومړی یې بندی کړ او بیایـــــی وواژه »(۳).

اورنګزیب په یوزرو اته شپیتم‌هق کال کی خپل پلار بندی کړ او خپله دڅلو یښت کلنی په عمر ‌ی‌دهند دشا هنشا هی دتخت پـــــر ګدی کیناست (هجری پد غه و خت‌کی څلیرو یشت‌کلن زلمی‌و ).سره له دی چی داورنګزیب زیات وخت‌په هندکی•په شخړوتیر شو ، خو له‌یو څه مودی ورو سته په د ی‌بر یالی شو چی د هند شا هنشا هی تریوه وا حد مر کز اوادار ی‌لاندی‌راو لی او خپل ټول ورو ڼه او خپل پلار له خپلی شا هی قربا نـــــی کړی(٤).

داورنګزیب دوران یو له‌کړ ییچ‌څخه ډك دورانو او له ١٨ ټك څخه‌تر کابل‌پور ی دمغو لی‌دربار دقوا وواود افغانانو دجګړو او مبارزومیدان و(٥) لکه‌چی یومور خ لیکی : (( اور نګزیب په‌سیاست کی‌شدید او سخت زړی و. اور نګزیب‌دهنددبابری سلسلی ډیر مقتدر پاچا و خو هغه هم په افغا ستان کی ښه ورځ ونه‌لیدله اودافغا نستا ن‌دخلکو له‌خپلواکی غوښتو نکو مبا رز و سره مخا مخ شو اوپدی‌بر خو کی ډیر و کړیدلو)) (٦).

---

۳ــ فرا قنا مه ، خوشحال خا ن‌خټك . دزلمی هیواد مل سر یزه او څرګندونی .کابل پو هنتو ن ،دژبو اوادبیاتو پو هنځی ،دیار لس سوه دری شپیتم ش کال دویم مخ.

٤ ــ تاریخ افغا نستا ن در عصرګورګانی هند یوسلو دوه‌ویشتم مخ.

٥ــ تاریخ مختصر افغا نستا ن،دویم ټوك ،پو ها ند عبد الحی‌حبیبی انجمن تا ر یخ و ادب د افغا نستان‌اکا ډیمی ، دیار لس سوه نهه ـ څلویښتم کال شپږ دیرشم او اووه‌دیرشم مخونه .

٦ــ افغا نستا ن در مسیرتاریخ‌میر غلام محمد غبار ،کابل‌دیارلس سوه شپږ څلو یښتم کال ،دری‌سوم‌مخ.

کله چې په هندو ستان کې د مغولي دو لت استبداد پەزورکی‌و ، نو په پښتني سيمو کې د خلکو د آزادي روحيه لا هماغسې پياو ړې وه اودو حشت‌اوزندې له ډار ا و مهال سر ه ســـر ه هغو ی د نـه تسليميدو ژ منه کړی وه . لو ی استاد اروانښاد پو ها ند حبيبـی ليکي :(( په افغا نستا نکی‌د هند دمغولي شا هنشا هی دوره دافغان او لس دآزادی غوښتنی ډير ښــــه مظهر ګڼل کيږی . ځکه چې پدغه وخت کې افغان او لس په خپلـــوسيمو کې دخپلوا کی ژو ندتيرو لو خو با بروغوښتل چې د هغوی‌داخلی‌آزادی له منځه يو سی اودسر درو دغه آزادی پر ګنی پەپنجرو کی‌بندی‌کړی. هغه‌ځوځوځلی له پښتنوقبايلو سره ونښت او له هما غه و خته راهيسی له‌مغولوسره دافغا ناتوملی جهاد پيل شو...»(۷).

په دغه‌و خت کی چې دمغو لــــوباد شا هی په خپل زور کی شوه‌نو هغوی و غو ښتل چی خپل تسلـطاله پخوا څخه هم دپښتنو پەسيمو کی زيات ټينګک کړ ی . د پښتنو مشرانو په هغه وخت کی دمحلی او قبايلی واکمنی پراساس نه غوښتل‌چی خپله قو می خپلوا کی دمغولی استبداد پەوړاند ی له‌لاسه ورکړی‌اودغه مو ضوع پەلومړی قدم‌کی‌د هندد مغولی دو لت اود پښتنو قو مو نو ترمنځ د دښمنی په را پيدا کيدو کی دخيړنی وړده .

کله چی داورنګز يب د زما نی‌پەسياسی او اجتماعی حالاتو خبری کيږی اود سياسی تشنج او وحشت‌پەباب زيات ټينګارکيږ ی نو داموـ ضوع دخپل خان له‌پاره څر ګنـــــددلايل لری . پدی‌و خت کی‌يوداسی خو ك واكمنی ته رسيږ ی چی له خپل پلار او له خپلو وروڼو سره

۷ــ تاريخ افغا نستان در عصـــرګور ګانی هند (يوسلو يوديرشم او يوسلو دوه ديرشم) مخونه .

همداسی چلند کوی چی سړی تــه یی په اوریدو سره و حشت پیدا کیږی ی. دفرانسی یو مشهورطبیب (فرانسوا بر نیه) چی دمغو لـــــی دولت ددربار طبیب‌و او د دربار له ټولو ښکاره او پټو حالاتو خبرو او دغه هرڅه یی په خپلو سترګـــو لیدلی دی، داورنګز یب دقدر ت‌ته درسیدلو اودسخت زړ ی اوتوطیو په‌باب یی‌یو جالب اثر کښلی دی چی دوخت دسیا سی تشنج او ظلم انتها تری را څرګندیږ ی. دیو ی نمونی په‌توګه هغه دپلار له بنــــــدوروسته له خپلو ورو ټو سره‌څومره دظلم چلندکوی اومثلا د((دارا)) په‌باب موږ په همدغه اثر کی‌لولو:

((...اور نګز یب بالا خره‌دوهمی‌مشوری ته تسلیم شو اوامر یــــی وکړ چی دارا دلته مړ کړی اوسپاه‌شکوه ګوالیار ته‌واستو ی. د دارا- شکوه دوژلو کار یوه غلام ته چـــی ناظرخا ن نومیده وسپارل شو.دغه غلام شاه‌جها ن تربیه کړی‌و .خلك‌وایی چی یووخت داراد غه غلام‌ډیر سخت وهلی‌و .دغه‌جلاد د دروڅلو. رو کسانو په ملګرتیا چی هغوی‌هم کټ‌مټ دناظر خان په‌شا ن وو ،دارا شکوه ته‌را غلل .داراشکوه په د ی وخت کی دخپل‌لمسی سره دچنهوپه‌ایشولو لګیاو .داراشکوه په چـــا باندی باور نه شوکو لی ځکه چی‌دمسمو میت څخه ویریده ،نو له دی سببه یی هر څه‌په خپله ځان تـــه پخول .کله چی دارا دلری نه ناظر خان ولیده، خپل لمسی ته یـــــی‌داسی چیغه‌کړه (( زمنه !داد ی‌زموږ دوژ لو له‌پاره راغلل)).دارا شکو ه زر دآشپز ی کو چنی چاړه چی فقط همدا دتیر ی‌وسلی له جملی څخــه‌دوی ته ور پریښودل شوی‌وه،لا س ته‌کړه، دجلادانو څخه یو کس زرپه‌سپاه شکوه وروغور ځید .پا تـــی نور جلادان دداراشکوه په پښو اولاسو نو پوری ونښتل .هغه یی په ځمکه راچپه کړ ،تر هغی پوری یی‌ټینګـــ نیولی‌و ،ترڅو نا ظر خا ن‌د داراشکوه سر پری‌کړ. دده سر یی‌بیازر داورنګز یب له‌پاره چو ټی‌ته

یووړ. اورنگز یب امروکړ چی د داراشکوه سر دهوډی سره یوځای راوړ ی... »(۸).

دغه بیلگه ددی لەپاره راوړ لـەشوه چی داور نگز یب یعنیدو خت دسلطان د سختزړ ی او وحشـتیوه نمونه شی .کنه خو نود هغـه دسلطنت او واکمنی په دوره کـیدغسی مسایل زښت زیاتوو .

او رنگز یب چی دخپل‌پلار او خپلووروڼو پەوړ اندی ددا سی چلنـد خاوندو، نو آیا له نورو خلکو سره اوپەتیره بیابەیی لەپښتنواود پښتنو له مشرانو سره څه ډول چلنـــدلرلو !

داشرف خا ن هجری دزو کړ یاوژو ند دوخت دسیاسی حا لاتـو یو عمو می جاج په همدی ډول‌و ، لەبلی خواپه همدغو وختونوکیخپله دپښتنو په منځ کی قبیلوید ښمنیاو جگړ ی په خپل زور کی وی او لەبده مرغه ختك او دخوشحا لخان‌کورنی هم په دغو قبیلوی جگړ و اخته وی .

پەپیل کی دغی کور نی دمغولو پەپلوی پښتنی قبیلیتکولی دی. لکەچی یو محقق لیکی : ((دخوشحال خا ن تر زما نیپور ی دمغولو سره چی دیو سفز ومندړواودپښتنو نورو قبیلو کوم جنگو نه کړ ی دی په دی جنگو نو کی ختك همیشه دمغولو په پره جنگیدلی دی. دیوسفزو خلاف په جنگو نو کی دخوشحال خان غور نیکه اکوړ ی ، نیکه یحیی خان اوپلار شهبازخان، پەقول دخوشحال خان دری وا ړه شهیدان شویدی. خوشحال خا نوایی :

---

۸ــ دمغلو په دو لت کـــــی دوروستیو سیاسی کودتاوو تاریخ ، فرانسوا بر نیه .روسی مترجمین:ب. ژو خاو یڅکی او م.تمارا پښتو مترجم : دوکتور گل محمدنورز ی.دادبیاتو پو هنځی ،دیار لس سوه دوه پنځوسم ش کال (یوسلو اووەلسم او یوسلو اتلسم) مخونه .

پلار نیکه می شهیدان وگورته تللی
پشت په پشت می هنر دا دی‌آل په آل
دیوسفزو سره جنگو نــــــه خوشحالخان ته‌په میرا ث پاتی‌شوی وو. دخوشحال خا ن خاندا ن دمغولو دلاسه جوړو او پلار په نیکه‌دمغو لو جاگیر داران راغلی‌وو ...»(۹).
په همدی ډول دپښتنو تر منځ زیات قبیلوی اختلا فو نه روان ووا دغو اختلا فو نو په پښتنو کی پرله‌پسی قبیلوی خونړی جنگو نه پیل کړی وو .دختکو اویو سفزو،ختکو او بنگښو او همدا راز دنورو ټبرو ترمنځ دښمنی او جگړ ی د یادونی وړدی (۱۰).
په دغه‌و خت کی دمغو لی‌دو لت‌له خوا دجاگیر دارو ځو نا متــو کورنی ټاکلی شوی‌وی اوپه پښتنی‌سیمو کی یی جاگیر همغهو ی ته حواله‌کړی و. ځرنگه چی پښتنا نه زیاتره یی دهند او دکابل دصو بی ترمنځ په‌لارو کی پراته‌وو نوهغو ی‌غوښتل چی جاگیر یی مشرا نو ته ورکړی او دوی په لارو کی ز موږله‌کاروا نو نو سره غرض ونــــه کړی ، خو بیا هم په دغه‌بر خه کی‌به‌کله کله څه پیښی راپیداکیدلی . دجاگیر دغسی یوه‌نا متو کور نی‌دخوشحال او هجری کورنی هم‌وه.
په مجمو عی ډول لکه چــــــی‌څیړو نکو او مور خینو ځرگند ه

---

۹ ــ ارمغان خوشحال .د میــــاسیدرسول رسا په مقدمه یو نیور سټی ،بك ایجنسی ،څوار لسم اوپنځلسم مخو نه .
۱۰ ــ سید رسول‌رساد(ارمغان)ــخوشحال) په‌سر یزه کی دد غــو قبیلوی جگړو بشپړ بیان راوړ ی‌اوپه‌عوا ملو او انگیزو یی هـــــم غږیدلی دی. دلته یی ځکه یواز ی یوه یادو نه قدری وشوه .

کړی ده ،دغه زمانه داجتما عی اواقتصاد ی بحرانونو او تضادو نو دوران‌و. دغه تضادو نه هم‌دواکمنی‌په منځ کی اوهم په او لسو نوکی راتر ستر گو کیږ ی .(( داور نگـ زیب دسلطنت ددوری مهم خصو — صیت دادی چی په دی دوره کـــی‌دمغولی امپراتور ی ټول اقتصاد ی او اجتماعی تضادو نه چی ډیر ی پخوانی ریښی یی لرلی دستر و اجتماعی بحرانونو په شکل کـــــی‌څرگند شول .خوشحال ختهك دد ی اجتماعی ،اقتصاد ی بحرا نو نـــو ښکارشو . اول‌یی په‌شپاړس سوه څلورشپیتم کال کی جیل ته و رـغو ځار کړ . له څلور کاله بنـــده وروسته یی بیا هم آرام ته پری‌نه‌ښود ،داځکه چی په امپرا تور ی‌او خصو صا دپښتنو په سیمو کی آرامی نه‌وه. مغولی امپرا تور ی د اجتماعی ،اقتصاد ی بحرا نو نوپه‌درشل کی‌ولاړه وه...»(۱).

داشرف خان هجری دژو کړ ی‌اوژو ند دوخت دحالاتو په‌مقدما تی جاج کی څرگندیږ ی چ ی‌داد تاریخ‌یو ډیر دحیرانتیا وړ څپر کی ا و ب‌ب دی. د هغه زیږیدل پداســـی‌وخت کی دی چی د دربار ظلم،تیری او فساد له‌یوی خوا په اوج کی‌دی،پرخلکو اواولس باندی د هغــــوی تیری اود جاگیر اوما لیی بو جو نه‌له‌بلی خوا او خپله دپښتنو ترمنځ بی اتفاقی او قبیلوی شخړ ی لــــه‌دریمی خوا. هجری په همد غــــی یو له حوادثو ډك مهال او جاپیریال‌کی سترگی غړوی اوبیانو خپلـــه دهمد غو حواد ثو یوه عمده برخه گرځی.

دهغه(( وخت)) له دغی ډ یر ی‌لنډی او ډیری کلی مطا لعی‌ورو — سته دهجری دژو ند لیك به با بدخبرو له پاره زمینه په ښه تو گـه برابریدا ی شی .

---

۱ـ دخوشحال ختهك کلیات . لومړی ټوك ،سریزه ددو کتورگل— محمد نورزی. دافغانستان دعلو مواکاډ می ،دیار لس سوه اته‌پنځوسم ش .(درویشتم او څلیرو یشتـــم)مخونه .

# د هجري ژوندليک

« په آواز يې غوږ لري د روه بلبلو
په دکن د (حال) قصه هجـــــر ي توتا کا » (۱۲)

## کورنۍ او زوکړه :

اشرف خان هجري (۱۳) دختکو په يوه نامتو کورنۍ کې وزيږېده هغه د ستر خوشحال خان ختک زوی ، د شهباز خان لمسی ، د يحيی خا ن کړوسی او د ملک اکوړي کودی دی.

---

۱۲ـ ديوان هجري (۲۸۰) م .

۱۳ـ داشرف خان او هجري په نومو نو د پښتو ادبياتو په تاريخ کې څيني نور اديبان او شاعران هم تيرشوي دي . په ((فرهنګ ژبانو ادبيات پښتو)) کې پري خبري شوي دي چې دلته يې لنډه ياد ونه کوو:

– اشرف ختک : دا فضل خان جما لګړی زوی او د پښتو ادب د پلار خوشحا ل خان ختک د کورنۍ له وروستنيو اديبانو څخه و . د همدې پيړۍ تر راوايلو پورې ژوندی و .

– اشرف خان ختک (. ۱۲۸ هـ ،ق په حدودو کې يې د هند په رامپور کې ژوند کاوه . د پښتو ژبې شاعراو اديب و .

– اشرف خليل : د دولسمــــــې هجري پيړۍ له شاعرانو څخه دی دخليلو له ټبره و.

د بيدل معاصر دی او هغه يې په خپلو شعرو نو کې يادونه کوي.*

داشرف خان هجری کو رنی نـه یوازی په ختهکو ، بلکی په ټولـــو پښتنو کی یوه ډیره نامتو سیاسیاو فرهنگ یکورنی وه . همدا چـــی

ویل کیږی ا شر ف خان هجـری د پښتنو ادب د نامتو شخصیت خوـ شحال خا نختك زوی دی ، نومو ړدهغه د کورنی په باب له زیاتو خبرو څخه او له زیاتو تفصیلاتو څخه بـی غمه کوی .

هجری د خوشحال خا نختك مشر زوی و .سره له دی چی له اشر ف خان هجری څخه مخکی د((اکبرخان)) په نوم دخو شحال لو مړ نی زوی له زیږیدو او وه ورځی وروسته مړشوی دی لکه چی د هجری زوی افضـل خان ختك په ((تاریخ مرصع )) کی لیکی :

(او فرزندان دخان علیین مکان چی په طفولیت مړه شوی دی دا دی : اکبر خان له خان جنت نښان مشرو داوورځو وچی مړ شو، مومن خان، زین خان ، فغفور خان ، نعمت خـــان ، منصور خان دا واړه .

---

* شعرونه یی په لاس کی دی.

ـ محمد اشرف : د فقیر محمـــدزوی و په ۱۱۹۸ هـ ، ق کال کی د لغما ن د عزیز خان کخ په کجوره کی زیږیدلی اوپه ۱۲۷۸ هـ،ق کال مـړ دی .اولسی شاعر و .

ـ امیرخان هجری : ژوند یی د(۱۰۸۰ ـ ۱۱۵۰ هـ ، ق ) کلونو په منځ کی و دپښتو له لرغونو غز لسرایانو څخه دی هجری تخلص یی کاوه *

* وگوری : فرهنگ زبان واد بیات پښتو . زلمی هیواد مل وزارت تعلیم و تربیه ، ریاست تالیف و ترجمه ، ۱۳۵٦ ش . (۳۵ـ ۳٦ )، (٤۳۰) او ٥٤۳ مخونه .

سکه ورونه سره د خا نجنت نښانوو، فوت شول . )) (١٤)

څه رنګه چې اکبر خان په ما. شومتوب کې مړ شوی دی نو ځکه خو اشرف خان هجری د خوشحا لخان خټک د مشر زوی په نوم یاد ـ یږی .

په تاریخ مرصع کې یې لولو:

«... واضح‌دی شی ، خان‌علیین مکان ته‌حق تعالی شپږ پنځو سس فرزندان نارینه کرامت کړه . په‌داواړو کې خان جنت مکان والانښان چې والد دمولف دی ، ارشد او ولی‌عهدو ... سعادت خان ، بهرام خان نظام خان ،یحیی خان ا وشهبا زخان دا شپږ واړه له‌یوی مور نه‌وو موریې خینی‌له تپې دالك‌خیل‌وه.لوردالف ولد ملك سرور ولد میـــرك وه ... )) (١٥)

د خوشحال خان خټك‌د مشر ی ښځې اود اشرف خان هجری‌دمورد نوم په‌برخه کې هم دوه ډوله روا یتونه شوی دی، خو زیاتره خیـړ ـ ونکی واپی‌چې دهغی نوم «مرجانی»و، اوخپله خوشحال‌خان خټك‌په‌همدی نوم یاده کړی‌ده.استاد پوهاندرشاد لیکی:

((... مور یې مرجانی نومید له. دالف خان لوردملك سرور لمســی اود میرك کړوسی ، سینی خټکه او په سینو کې الك‌خیله وه . واده‌یې پــــــه ١٠٤٠ هـ، ق کـــــال‌شوی دی او په ١٠٨٠ هـ ، ق کـــال مړه ده . )) (١٦)

---

١٤ــ تاریخ مرصع ، افضل خان پیښور . (٢٦٠) م .
موږمند تصحیح، مقدمه او تعلیقـات‌خټك .داستاد دوست محمد کا مل

١٥ــ تاریخ مرصع (٢٥٨ـ ٢٥٩) م ، م .

١٦ــ ګلشن روه . میجر راور تې دپوهاند عبدا لشکور رشاد سریزه دریم چاپ ، ١٣٥٦ شس . (٨٢)م.

اروا ښاد سر فراز خان (عقـــاب ختټك) وايي چې «...د خان او لنی ټبر توتيا گله ده . دخان ټول‌مشران‌زامن دتوتياگلی‌نه‌شوی وو...))(١٧)

دفرا قنامی مدقق سریزه لیکو نکی په د ی‌باب بحث کړی دی‌اودهمدغو په‌ادامه یی کښلی دی : «...مولوی‌نور محمد نوری افغا ن‌کندهاری په تحفة الامیر کی یوه غزله د تو تیا په‌نامه ضبط کړی‌ده . پوهاندصدیق الله رښتین دمو لوی نور محمدافغان‌د همدغه ضبط له‌مخی یوځای‌کښلی دی : «د اشرف خان دموریو غزل‌دمولوی نور محمد کند هاری دپښتو گرامر (تحفةالامیر ) په‌آخر کی‌خو ندی‌ساتل شوی د ی‌ها نری جارج‌راورټی دپښتو گرامر د دوهم‌چاپ پــــه مقدمه کی‌د خان‌دمشری ښځی‌دشا ـ عری خبری کړی‌دی. په دغه اثرکی‌داهم ویل شوی چې د اشر خــان دمور دوه نومه ضبط شـــوی دی(توتیا او مرجانی ) خان همددمور دمرجانی په نامه یاده کـړ ی‌ده :دنطفی اثرمی لاړ په‌کی ضایع شــو واړه‌پی دمرجانی لری تاثیر ))(١٨)

اشر ف‌خان هجری په ١٠٤٤ ه ،ق کال په سرای اکوړه‌کی زیږیدلی دی .

استاد کامل د ((خوشحال خا ن‌ختټك )) په‌نوم په خپل اردو اثر کی لیکی : ((اشرف خان هجری د١٠٤٤ه ، ق کال دروژی دمیاشتی پـــه نهمه یا (١٧) نیټه چې د ١٦٣٥ عیسوی کال د مارچ له میاشتی‌سره سمون خوری ا ویا په ١٠٤٩ ه ،ق‌کال کی چې د ١٦٤٠ عیسو ی کال

---

١٧ــ خوشحا لیات . عقاب ختټك ١٩٧٥ ع . (٢٤)م .

١٨ــ فرا قنامه . خوشحال خا ن‌ختټك . د زلمی هیـــواد مل‌تعلیقات (٣) م .

د جنوري له مياشتي سره سمو نخوري ، زيږ يدلي دی . ))(۱۹)

نومو ړی استاد د «کليات خوشحال خان ختك» په سريزه کی يوازی (۱۰٤٤) کال ليکی : ((په ۱۰٤٤ هـ، کی د روژی په مياشت (مـــار چ ۱٦۳٥ ع) کی د خوشحال خان زوی اشرف خان چی هغه هم د پښتنـــو لويو شاعر انو کی شمير لی شـــوی وزيږ يدو . )) (۲۰)

هغه فارسی قطعه چی پـــه (تاريخ مرصع) کی را نقل شوی او ويل شوی ی چ ی داد خوشحال خان ختك له خوا کښلی شوی، د اشرف خان د زيږ يدو نيټه ده ، نو په ( تاريخ مرصع) کی په دغو دووبيتونو کی دوه ځايه غلطی ښکاری مرحوم اســـتاد کامل بيا هم د تاريخ مرصع پـــه تعليقاتو کی په دی باب داسی ليکــلی دی :

«بهار اهل شگفت = ۱۰٤٤ او بهار ايل شگفت ۱۰٤۹ راځی .

د ترکی ايل او د عربی اهل تقريبا يوه معنی ده ايل اولس ، قبيله ، کورنی ، خاندان وغيره . خو په اعدادو کی يی د پنځو فرق دی ،خو مرحوم عقاب ختك په همـــدی ارتباط ليکلی دی :

((په تاريخ مرصع)) کی يی دخان دخولی نه داشرف دپيدا يښس تاريخ داسی ليکلی دی :

به زاوياء مه رو زه پـــاس اول شـــب

بزاد اشرف واندر کنار دايه خفت

چو بود وقت بهار و شگفتـــن گلها

حساب سال وی آمد بهار اهل شگفت

---

۱۹ـ خوشحال خا ن ختك (اردو) دوست محمد خان کامل اداره اشاعت سر حد ، پشـــاور ، ۱۹٥۱ع . (۲۳۰)م.

۲۰ـ کليات خوشحال خان ختك سره دمقدمی او حاشيی د دوست ممحد خان کامل مهمنداداره اشاعت سرحد ، پيشاور ، ۱۹٥۲ ع . (كـ مقدمه )م.

لومړی شکل یې قیاس ته نږدې دی . » (۲۱)

مرحوم عقاب ختک په همدې ار تباطلیکلي دي :

«په تاریخ مرصع کې دخان دخولې نه داشرف دپیدایښ تاریخ داسې لیکلی دی :

به زاویاء مه روزه پاس اول شب بزاد اشرف واندر کنار دایه خفت

چو بود وقت بهار و شگفتن گلهاحساب سال وی آمر بهار اهل شگفت

په دا حساب اشرف( پــــــــه مسلمانی حساب د پنځم سبق) د شپې په اول پهر کې په اولسم تاریخ دروژې دمیاشتې د سپرلی په موسم کې په کال ۱۰٤٤ هـ ، مطابـــــق د(٦ ۳ـ ۱٦۳٥ ع) کې پیدا و . د «تاریخ مرصع» په څنو نسخو کې د (زاویا) اود (ایل) لفظو نه غلط دی. »

(۲۲) په دې توګه وینو چې داشرف خان هجری دزوکړې کال(۱۰٤٤ هـ، ق)دی .

داشرف خان هجری د نــــوم او تخلص (یا تخلصونو) په باب ډېر څو ټکي دیادونې وړ دي. دا څکه چې له خپل نوم څخه سربیره ، هغه د خپل خان دپاره څو تخلصونه هم په خپلو شعرونو کې راوړي دي .

د ((خوشحالیات )) لیکــــو ال وایي : ((هسې خو هر چاد ی اشرف یااشرف خان بللی دی . خو پــــه «اخبارات دربار معلی» کې د ((محمد شریف پسر خوشحال ختک ))ذکر راغلی دی .خودمزید اتحقیق بغیــــر موږ دانه شو ویلی چې د محـــــــمد شریف نه مطلب څوك دی ؟ )) (۱)

که له همدغه «محمد شریــــف »څخه په یاد شوی اثر کې مو خــــه ((اشرف خان هجری )) وی نو شاید په (اخبارات در بار معلی)کې دا نوم

---

۲۳ــ خو شحا لیات (۲۸)م. ختك . د استاد کامل تعلیقات او سریزه .

(۲٥۸ــ ۲٥۹) م ، م .

۲۲ ــ خوشحا لیات . (۲۸ــ ۲۹) م،م.

۱ ــخوشحا لیات . (۲۸) م .

ناسم نقل شوی او خوندی شو ی‌وی . د ((خوشحا لیات )) یادشوی لیکوال داشرف خان د تخلصونو په‌باب هم څرگندونی لری. وایی :

((په پښتو کی هجری اول سری دی، چاچی داسی تخلصونه هم انتخاب کړی دی ، کوم چی‌د ده دنوم یاقوم یا سکو نت سره هیڅ تعلق نه لری. مثلا : مهجور، هجر ی‌اواکرم. )) (۲)

اشرف خان د خپلو شعرونو په‌مقطع کی خپل بیلا بیل نو مونه یا تخلصونه راوړی دی لکه:اشرف،هجری ، ختک ، روهی ،مهجور او په‌بی تکو شعرونو کی اکرم . دلته‌یی څو شعری بیلگی راوړو :

۱ـ هجری :

د عمل پتی دی توره په گناه‌کړه هجری وینځه یی داوښکو په باران (۳)

او : ته‌یی قصد دوژل مه کـــوه‌گردونه

په چاړه د هجر خـــودهجری مذبوح دی (۱)

۲ـ ختک :

عندلیب ختک بندی په هسی ملك‌شو

چی‌توتایی ژبه وایی د غـــراب (۲)

او :

زه ختك دیار طلب کړم مونده‌شی

له‌ناکامه یی له غم سره ملیــــاشوم (۳)

۳ ـ روهی :

په‌وصال به دروهی خاطر قرارشی

---

۲ـ همدغه اثر. (۸)م.

۳ـ دیوان هجری . (۱۱۰) م .

۱ـ دیوان هجری . (٤۷۱) م .

۲ـ همدغه اثر . (۳۳) م .

۳ـ همدغه اثر. (۱۰٤) م .

بیلتانه په زړه ویشتلـــــی د ی‌غوغا کا (٤)
په ناوك دبڼو زړه دروهی ولی
دستم سبق دی لوستی په‌استاددی (٥)

٤ـ اشرف :
دسرو یره هرگزمه کوه اشرفه ! عاشقان دی پروانه د عشـــق په‌چرکی (٦)

او:
په احوال یی فرشتی کافرا قونه دبلبلو اشرف ژاړی مبتلا دی(٧)

٥ـ مهجور :
سخنور بلبل چ ی‌تالیده‌مهجوره!
په قفس د تورو خاورو لاجواب‌شه (١)

او :
هیڅ امید له خلقه مه کـــــوه‌مهجوره !
په غمونو صبر کړه خـدا ی‌دی رهبر دی (٢)

٦ـ اکرم : ( په غیر منقوطـــو شعرونو کی )
دم‌له دمه صد ولك کاره ملاکه
اکرم کم آگاه ددهر له اســراره (٣)

او :
د طرو مسں د ی‌والا اکرم کروکړ

---

٤ـ همدغه اثر . (٩) م.
٥ـ همدغه اثر . (٤٧٠)م.
٦ـ همدغه اثر . (٦٣)م.
٧ـ همدغه اثر . (٢٤٤)م .
١ـ دیوان هجری . (١٤١)م.
٢ـ همدغه اثر. (١٩٢) م .
٣ـ همدغه اثر . (٤٢٩)م.

ماهه هاله دی گل ملك لره صدورکه (٤)

**د ژوند حالات**

اشرف خان هجری د خوشحال خان ختك ترروزنی لاندی را لوی شو. د خوشحال او هجری ترمنځ اړیکی دپلار اوزوی، ددوو سرداړانو او ننګیالیو شاعرانو اودخپل ټبر د مشرانو په توګه له څو اړخونو څخه دغور وړ دی ، هجری په زلمیتوب کی د خپل پلارپو قوی ملګری و.

په هغو ټولو جګړو کی یی بر خه واخیستله چی دخوشحال په مشری ترسره کیدلی البته په دی منځ کی د خوشحال خان ختك او هجری تر منځ کله کله خپګان هم را غلی دی. یو لیکوال لیکی :

((اشرف خان هم خان غو ندی دتوری اوقلم څښتن و. ده دجنګ تجربه د دولسو کالو په عمر حاصله کړی وه ور پسی په نورو ډیرو جنګونو کی یاد مغلو د لوریه ، یادهغو خلاف جنګیدلی دی. د جنګ په میدان کی دی یو نه یریدونکی جنګیالی و. هجری د خپل عمرزیاته حصه دخپل پلار سره ګډه تیره کړی و ه اود هغه په ډیرو کار نامو کی یی ګډون کړی و ، او دیوه دذکر بغیرد بل جامع حالات لیکل نا ممکن دی . په مجموعی حیثیت سره دوه سره زړور سر بازان ، پیاوړی شاعران . پښتنی جاګیر داران اومنصبداران ، د آزادی او خپلوا کی دجنګ علمبرداران ، دمغلو قیدیان اود وفات په وخت غریب الدیاران تیرشوی دی . هجری د خان مشر، اعتباری ، میړنی او قابل زوی و . عموما خوپه دواړو کی اتفاقپاتی شوی و، خو کله ناکله د مغلو د شیطنت په وجه نفاق هم په کی راغلی وچی یو ځای خویی د شدت رنګ اختیار کړی و دی دپاره مورد خان په کلیاتو کی د هجری ستاینه هم وینو او غندنه هم . )) (١)

---

٤ـ همدغه اثر . (٣٨٥)م.

١ـ خوشحالیات . (٣٣) م .

د خوشحال له خوا خپل مشرزوی اشرف خان ته د خپل ځان د نایبی خبره هم ددقت وړ ده. افضل خان په ((تاریخ)) مرصع ، کی هغه د خان ((ولیعهد)) گڼلی دی . (۲) خو شحال خپله هم وایی چی ما په خپل ژوند ونی خپل ځای هغه ته ورکړی و . (۳) یو خیړو نکی هم لیکی چی ((... هجری له خپل پلار سره په هغو خونړیو جگړو چی له یوی خواد بنگښو او یوسفزیو سره اوله بلی خوا په خپله د خټکو په قبیلو کی پیښیدلی ، په فعاله توگه گډون کړی دی . ده تل له خپل پلار سره صداقت او اخلاص کاوه او د خپل استعداد ، زړور تیا او ذکاوت په وجه په هغه احترام ورته کاوه . څه وخت چی خوشحال خان دسفر کولو اراده درلوده ، د هغه اعتماد له مخی چی په ده باندی یی لاره ، دچارو اداره او دمربوطو قبایلو د لانجو حل به یی ده ته سپاره ... )) (۱) له زند ان څخه چی خوشحال خان ختېك خپل ټول ټبر او خپلی کورنی ته وصیت نامه را لیږلی وه، نو هغه یی هم داشرف خان په نوم د عمر اسما عیل خیل په لاسس را استولی و ه له دی څخه هم ښکاری چی خوشحال خپله مشری له ځانه وروسته هغه ته سپارلی وه . (۲)

خوشحال خان ختېك د هغه آزاد او ((بی پروا )) فکر له امله چی لرلو یی ،د خپلو زامنو سخته غندنه یی هم کړی ده . د خوشحال په نظر

---

۲ـ تاریخ مرصع . (۲۵۸) م

۳ـ ارمغان خوشحال د میا سید رسول رسا په سریزه . (۳۳ـ۳٤) م،م.

۱ـ خوشحال خا ن ختېك اود ده ادبی مکتب .دکتور عارف عثما ن دافغا نستان د علومو اکاډ می ، د پښتو څیړ نو بین المللی مرکـز . ۱۳٦۱ . (۱۲۵) م . م . م .

۲ـ تاریخ مرصع . (۲۹۲ ـ۲۹۳)

چې کله کوم زوی بد راغلی نود هغه سخته او بی پروا غندنه یې کړی ده او حتی داسی وینا یې هم کړی ده :

چې دا هسی رنګه سپی ځنـې پیدا شول
لا په شك یم چې خوشحال کله آدم دی (۳)

د خپلو خپلوانو او زامنو په غندنه کې خوشحال زیاتی شعری نمو نی لری او په دی لړ کې یې پرهجری هم هیڅ صرفه نه ده کړی .د خپلو زامنو او خپلوانو په باب یو ځـا ی وایی :

اقربارا ته عقرب شول
رضا مند مې په تعب شول
دواړه ترونه مې نا اهله
ابو جهل بولهب شول
زه یې بندکړم په مغلو
په خانی او په منصب شول
رشوتو نه یې قبول کړل
په تلاش کې روزوشب شول
دالوی زویه مې لوی مه شه
د هزار بلا سبب شول
زه یې هند لره روان کړم
په نشاط او په طرب شول
خیل خانه مې شوه په غرونو
پری کارونه پیښس عجب شول

---

۳ـ د خوشحال ختك کلیـات .لومړی ټوك .دکابل چاپ . ۱۳۵۸ ش س(۳٤۷) م .

نازپرور زویه **می واړه**

په فریاد و په **شغب شول**
چې یې لمر لیدلی نه‌و
په ځنګلو نو تشنه لب شول
درست اولس یٰ قبیله واړه
ګرفتار په ډېر غضب شول
په آه آه د فراق ژنو
زړونه وړی د عنب شول
خوشحال نه مونده ختکو
که یې هر څو په طلب شول (۱)

په دغه شعر کی باید هجری دخوشحال په ((ناز پرور زویه ))کی وشمیرل شی ، ځکه چی د خوشحال په‌بندی کیدلو هغه هم ډېر غمجن شوی دی . څو په نورو برخو کی‌کله‌چی خوشحال له اشرف خـــان څخه خوابدی شوی د ی. نود هغه‌سخته غندنه یی هم کـړی ده . د خوشحال له خوا د هجری دغند نی‌شعرونه زیا ت‌د یٰ‌خودغه مشهوره

نمونه یی دزیاتی پاملرنی وړده: دغه قصیده په ۱۰۹۱ ه ، ق کال‌هغه ویلی ده او ځینی برخی یی دلتـه‌رالیکو :

چی‌په واړو کی ارشد دی
نن یادیږی اشرف خا ن
دمور پلار نیکه ته نه دی
داناکس دی لابل شان

---

۱ـ د خوشحال ختك كلـــيات .لومړی ټوك . (۱۰۷)م.





په ژوندون می خپل ځای ورکړ    باندی زه شوم مهربا ن
زریی ټول کړل په لکونو    طبیلی یی‌عرا قیان
لوی زما په نوم په توره    خواروی می فرزندان
د خپل ځان په شیرازی دی    تار په تار برادران
بد خوا هانو سره خانده ی    په زړه چوی نیك خواهان
ښه کارونه چی زما وو    یازما د دود مان
یوپه ده کی پیدانه شو    ور ته خلق دی حیران
که‌یی بولم گلستان ته    باندی اور دی گلستان ...
د گلونو په ښځی کی    کره ځان ته خارستان
ښه لایق زویه م ی‌نور دی    ولی خدای کړل کشرا ن
زین د زرو په خره پروت دی    په ښه آس باندی پالان
قسمت کاندی خپلی چاری    نه علاج شته‌نه درمان
تربیت زما په ده و    په ښوره باندی باران
که می و لوستل و ده نه    کتابو نه دلقمان
نه اثرور باندی و شو    نه‌یی ځای شول په جنان...
که‌سرود ور ته آغاز کړ ی    سرود څه اور یی کرا ن
آینه که ورته کیږدی    په‌کی څه گوری کورا ن
له‌قرآنه که‌ویل کړ ی    خو انکار کا کافرا ن
حمیده به‌په‌کی بن وی    ذمیمه چندان چندان
لکه دی دی په حسد کی    بل‌به نه‌وی هیڅ انسان
سر تر پایه و هم و یره    په خپل زو یه بدگمان
دمردی په‌کاروبار کی    ترزنانو شه قربان





تر خلوینبت کالونه تیر شو | باندی خر خ نه‌شو پیکان ...
نه‌یی توره چر ته سره کړه | نه‌یی خو ز شو بر گستوا ن
که‌په‌کور لری لکونه | ځنی شوم درو می مهمان ...
ذکر فکر یی دزرو | تو لوی روپی مهرا ن
شوم، منحوس ،لئیم ، سفله | مصا حب یی هیچنا ن
ځای د مرد ور ځخه نشته | ور ته‌ناست دی نا مردان ...
خپل شا مت دبدفعلی | ورته ناست په هر مکان
چی‌زما سره خوك تول شی | دده زړه شی نور لړ زا ن
چی زما د لښکر غړ شی | اوبه‌کیږ ی دده ځان
زه په لویو اندیښنو کی | دی په‌کور کی دی غرا ن ...
زه دده په‌کار خندان یم | دی زما په کار خندا ن
چی‌زما له غمه واور ی | بی حسابه شی شادان ...
خدا ی‌یی خوارپه دین دنیاکا | دعزت می کانقصا ن
چی می وار ور باندی ساز شی | بیاراوړاندی کا دوستا ن
وار دهری چاری تیر شو | فکر لوی دی دازما ن
هر چی وی هغه به و شی | خو لا حول په شیطا ن
مفاجات دی یی نصیب شی | یایی تور مار جا نستا ن
چی هیڅوك پری بدنام نه شی | هسی گور ته شی روا ن
لکه عاق دی عاق دی درو می | دین دنیا وا ړه خسرا ن (۱)

سره له دی چی استاد دوست‌محمد کا مل په ((کلیا ت خوشحال خان ختهك)) کی ایکی‌چی :

---

۱ـ ار مغان خو شحا ل ،در ی‌دیرشم او اووه دیرشم مخونه.

(( پدی قصیده کی داشرف خان هجو وړو مبی شوی ده او بیا بیډ
بل دنا می ا خستو هجو جار ی ساتلی شوی ده . حقیقت کی د ی
هجو کی لو یه بخره دبهرام همده. په دی شعر کی چی کو مه اشاره
ده دابهرام طر فته ده. لکه چی خان د((ر)) دپتهی یوی قصید ی
کی وایی :

دبهرام لښکری پرو تی پــــه تیری کی
امید دی چی خدای یی زر کا شر مسار »(۱)

خو په قصیده کی دبهرا م په ارتباط په دی باب ثر گنــــــد
((صرا حت)) نه شته . په هـــــره تو گه چی وی ،خو شحا ل خان
ختك په زیاتو شعرو نو کی داشرف خان هجری سخته غند نه هـــــم
کړی ده:

شپږ اووه پیږ ی زما و گور نه لاړی
همگی په وینو رنگ په تیــــغ وژلی
اشرف خا ن به یو پر ها ر پــه ځان وانه خلی
نه دانور دده دموره چــــــــی زوو لی
ترخلو ینښتو کالو تیر شـــــو لاتراو سه
دوه تیره اغز ی پری نه د ی ثرخیدلی
خودپلار په نام یی خوری چی مشران دی
نور دی توری دکار نه د ی دا . . . . . .
هیڅ تاوده ساړه په ذم په مدح نه دی
دابی شرم می څه اســـــږ نه د ی غند لی (۲)

---

۲ ـ کلیات خو شحال خا ن ـ ختك .داستاد کا مل په سر یز ه
او نو ټو نو .(پنځه سوه اته اتیا ـ یم) مخ.
۲ ـ ار مغان خو شحال( شپږ سوه دوه نوی یم) مخ.

خودد غو زیاتو غند نواورتو نو په ځنګ کی هجری ، دخوشحال له خوا زیا ت ستا یل شو ی هم‌دی، اودنورو ډیرو ورو ته پــه نسبت یی د خپل پلار زیا تــی‌ستا ینی په‌برخه شوی دی. کله چی خوشحال له هجر ی څخه‌خپه‌دی ، هغه غند ی او کله چی هغــه خــبګــــــا ن او ز ړ ه بداو ی له منځه ځی نو ستا ینه‌یی کوی. دخوشحال په شعرو نوکی‌دداسی لړ او ډیری ستا ینـــی نمو نی هم زیاتی دی .د خپلــو زا منو دځا نګړ تیاوو په لړ کــی وایی:

زما مشران زو یه چی‌یی کار شو امتحان

اشرف خا ن هم کارفرمای‌دی هم‌کارکن دی هم کاردان...(۱)

اویاوایی چی :

زوی می اشرف خان دی چـــی‌خور شوی کور پری ټو ل د ی

زه چی بند ته لاړم خیلخا نه‌می‌شوه بر همه

څلیر یشت زویه نور لرم ،یودی پکی چی لوی دی

واړه بر خوردارشه،خدا ی‌یــی وساته‌له‌غمه

اوس پنځه نمسه ی‌لرم ،افضل داشرف خان دی

خدای یی بر خوردار کړ ه په‌ده ډیره لرم تمه ...(۲)

یاګورو چی له‌بنده ورو ستـــه خوشحال دخپل زو ی د لیك په ځوا ب کی دهغه په‌با ب څو مره خواخوږ ی څرګندوی:

په مردن پروا دار نه‌یم په زندان پروادار څه یم

---

۱ ــ ار مغان خو شحال (شپږ سوه یو اتیایم) مخ.

۲ ــ همد غه اثر شپږ شپیتم مــــــخ.

یوه غصه، دویم بیلتون دی چی په اور ، په اوبوزه یم
اشرف خا ن دی راته‌کښلی زه خو خو ښں په خط دده یم
پنځه میاشتی یم په بند کی بابا ډیر ډاډه په زړه یم
زو یه !ماخو غم دتاکړ چی ته‌ښه یی زه خو ښه‌یم
چی فلك سره سر با سی په همت کی هغه زه یم
کړه یی نه دی بی حکمته زه‌خوشحال دده په‌کړه‌یم (۳)

کله چی په یو زړو ځلوراویایم ه.ق کال کی خو شحال خــــا ن ختك دمغولو له خوا په پیښور کی بندی شو او بیاډیلی ته‌ولیږدو ل شو، نو اشرف خا ن هجر ی د خدایار خا ن خلیل او جګرا م‌په لمسه کابل ته لاړ. په دی کارکی‌له هغه سره د خوشحال خا ن مشوره نه‌وه. هجری غو ښتــــل‌چی دکابل له صو به دار(( سید امیر خوافی)) سره وګور ی او د پلاردخلاصو ن په باب ور سر ه خبری وکړی. سید امیرخوا فی ددی پرځای چی داشر فـخا ن ـ هجری سپار ښتنه و منی هغه‌یی‌ه م‌بندی کړ . په دی کارخوشحال لاورنځیده :

نوره واړه پښتو نخوا په ځای‌میشته ده
خو یو زه د ی‌زما نی په کی منصور کــړ م
اشرف خان په نا پو هی په‌هم کی‌و نښت
زه دده غمو نــــولا پر زړه رنځور کړ م ... (۱)

افضل خا ن ختك دی پیښی‌ته‌داسی اشاره کوی:

---

۳ ـ دخو شحال ختك‌کلیات. اوم‌ړی ټوك ( دکابل چاپ) یوسلو دیار لسم مخ.

۱ـ ار مغان خو شحا ل شپــــږویشتم او اوو ه‌ویشتم مخو نه .

«... په دا مینځ کی خــــان جنت نښا ن خلاف له مصلحتــــه دخا ن علیین مکا ن دخدایار خلیل دجګرام هندو په قول را غی .لار یی ودانه کړه. امیر خا ند خــــا ن علیین مکان په رنګا رنګ بــــد وکښنه . په حویلی کی دکو ټوا ل ناست و . د خلاصی کار یی کیده . چی دامیر خا ن کښل ور غلل ، بندیخانه شه ... خان جنــــت نښا ن هم په مغل ورا غی ،ویی تاړه...

دلیر همت چی د بهــــا د رخا نزوی و، ضا من شه، خا ن جنت نښان یی له قیده خــــلا ص کړ...» (۲).

اشرف خا ن ډیر زر بیر تــه مغو لو بندی کړ . دغه ځل هم هغه دنوموړ ی دلیر همت خا ن په ملاتړ اله ز ندان څخه را خلاص شو .

ددی کار بل علت دا و چــی د پلار او زوی د واړو په زندانی کیدلو د پښتنو په سیمو کی ا و په مشخص ډول د خټکــــو پــه سیمه کی دالی ګولی او بد امنیتی نښې نښا نی پیدا شو لی او په کابل کی مغو لی صو به دار سید امیر خوا فی، دی ته اړ شو چی اشرف خان را خو شی کړی . کله چی اشرف خان را خلاص شو نو بیر ته اکو ړ ی ته راغی او د خټکو مشری یی پر غاړه وا خیسته .په دغه وخت کی هم اشر ف خان لاد مغولو خلاف کوم هوډ نه و کړی حتی بیا هم خو،خو ځلی د مغو لو په پلوی و جنګید .

«هغه وخت چی خو شحال خان لاپه هندو ستان کی نظر بندو ، یوسفزو دبهاکو خان ا وا خون چالاك په قیادت کی د مغولو خلاف بغاوت وکړو . م لاچا لاك دبهاکوخان دهدایاتو مطابق سره د پنځو زرو یو سفزو د لښکره د اباسین نه پوری و تو او د ضلع هزاری پــه یوه علاقه یی حمله وکړه . کا من خان چی د اټك په محا فظت د ، حکو مت له خوا مقرر شوی واوکوم وخت چی د حکو مت لــــه خـوا د

۲ـ تاریخ مرصع، ۲۷۵ـ۲۷٦م،م

باغیانو خلاف د جنګ احکا مات ور ته راورسیدل، نو د باغیانو خلاف د مز ید ا مداد نه وړاندی یی د باغیانو خلاف پیش قد می وکړه . دغه وخت اشر خان هجری او ګکهړ سر دار مراد قلی خان سره د خپلو خپلو سرو د سرکاری پوځ د ا مداد دپاره راورسیده او څه وخت چی با غیان او سر کاری پوځو نه په هارون ګودر سره مقا بله شول ، نو یو سفزی په ماتی شول او تقر یبا دوه نیم زره کسان یی قتل ، ژو بل او ګرفتارشول .ډیر اباسین یو وړل، تاریخ لیکی چی کا مل خان( داټك مغولی پوځدار) د دری سوه قتل شوو پښتنو سرونه دتنـــه پـــــر ی کړل او کله مینار یی تر ی ساز کړو...»

(ا)

کله چی خو شحال خان ختټك له زندان څخه را خوشی کیږی. نودلته په پښتنی سیمو کی حالات څـــه بل ډول کیدو نکی دی . په پښتنی بیلا بیلو سیمو کی د مغو لی دولت داستبداد پـــه وړاندی د پښتنـــو ، مبارزی قوت پیدا کوی . په ۱۰۷۹ هـ،ق کال کی چی خوشحال خان ختټك دهندو ستان له بند څخه را خلاص شو نو د ختټکو خانی یی بیر ته خپله کړ له . په یوزرو دری اتیا یم هـ،ق کال کی چی د ایمل خان مو منداو دریا خان اپر یدی تر مشر تا بـــه لاندی تور یا لیو پښتنو په خیبر کی د مغولی حکو مت پوځو نو ته سخته ماتی ور کړله ،نو لا په دغه وخت کی هم خو شحال خان ختټك د حکو مت د پوځونو مل و .

خوشحال خان ته له دغی ماتی ورو سته له مغولی حکو مته ویره پیدا شوه او له اکوړی څخه نظام پورته کړه شو . په اکوړه کی خانی بیا عم اشرف خان ته پاتی شوله .(۲)

د همدغو شخړو په جریان کی چی د مغو لی حکو مت په ا مر د

---

ا ـ دیوان هجری ، د همیش خلیل مقد مه .(س ـ ض) م،م .

۲ـ ګلشن روه (دپوهاند عبـــدالشکور رشاد سر یزه). ۸۳ ـ ۸٤ م،م .

لاهور د صوبه دار فدا یی خان په‌مشری، د کابل د مات شوی‌صوبه دار محمد ا مین خان د مرستی‌له پاره کوم پو ځ پیښور‌ته رااتللونو اشرف خان یی تر خیر آباد پوری‌مخی ته ورغی . (۱) کله چی فدایی خان پیښور ته راورسید نواشرف خان هجری ور سره دوه‌ځله ولیدل . همدا رنګه کله چی څو میاشتی ورو سته د محمد ا مین‌خان پر ځای د وهم مها بت خان (میرزالهراسپ) څلورم ځل د کابل صوبه دار (والی) شو نو اشر ف‌خان‌بیاهم تر خیر آباد ه پوری مخی ته ورغی او تر رنو ښاره یی په جلب‌کی و .

دا نو هغه و خت دی چی د استبداد په وړاندی زموږ د خلکو د مبارزی‌هڅی لا زیا تی تودیږی .خو شحال خان ختک هم له مغو لو سره خوابدی کیږی او په دی توګه‌دغه مبارزی خپلی پوره پیاو ړتیاته رسیږی . وایی : «بیاچی مغو لو هرڅو دده (خوشحال خان ختک)د خپلو لو کو ششش و کړو ، خوهغه ونه منلو . مغو لو د اهځه کوله‌چی‌د خوشحال خان په خلاف اشرف خان د ځان ملګری کړی .خو په دی کار کی ډیر کا میاب نه شول .(۲)

خبره دا ده چی خو شحال خان‌د هغو بیلا بیلو انګیزو او عواملو پر بنا (چی څیړل یی دلته نه زموږ کار د ی او نه یی په دو مره لنډ یز تشر یح کو لی‌شو) دهند د مغولی مستبد دو لت په وړاندی د مبارزی او جګړی‌تکل وکړ او دغی مبارزی ته یی عملی بڼه ور کړله . د هند د مغو لی دو لت واکمنو مقا مو نو له دی

---

۱ـ د اشرف خان هجری ، د ژوند لیك په کښلو کی په‌پر له پسی تو ګه له دغو آثارو زیاته استفاده شوی ده .
ـتاریخ مرصع. د افضل‌خان ختك .
ـپر (ګلشن روه)د استاد پوهاندرشاد سر یزه .
ـپر (دیوان هجری) د نا متو لیکوال همیش خلیل سریزه.
۲ـ دیوان‌هجری .(ج‌ـض‌مقدمه)م،م

ورو سته خو شحال خپل نه کړی‌شو، ځکه خو هغوی په د ی لـتـهـ
کی شول چی پر ځای یی د خوـشحال د کور نی کوم بل مشر د
ځان کړی د اسی چی هم پری خپل‌تبرزا تول شی اوهم پری دخوشحال
د مخی خنډ جوړ شی . ددی کار له پاره یی اشرف خان ورو گنلـو
او دهغه د خپلو لو پــه هخو کــی‌شول دوی په پیل کی په خــپلو
دغو هڅو کی بریالی هم شول . اشر ف خان هجری یی تر یوه‌وخته
پوری د خپل ځان کړ . حتی کله‌چی خو شحا ل نظام پور ته لاړ نو
مهابت خان له اشرف خان څخه‌دا ضما نت وا خیست چی خپل پلار
به په خپله سیمه کی نه پریږدی.خو شحال چی له دی کار څخه خبر
شو نو له اشرف خان څخه سخت‌خوابدی شو . د خو شحال او
هجری د ډیر شدید م خالفت‌خبره‌له همدی ځا یه د و ا م پیدا کــوی
خــو شحــا ل لـــه نظا م پــور څخه هم کله شو او د تری بولا ق
په سیمه یی د « یوټ » په مقام‌واړول‌خرنگه چی دغه ځای دختکوپه سیمه
کی پروت دی نو اشرف خان دغــه‌ځای نه دخوشحال خان د را تــگ
مخالفت وکړ. دا ځکه چی مغو لی صوبه دار ته یی همداسی ضمانت
ورکړی و. همدغه موضوع دپلارااوزوی تر منځ د جنگــ جگړی سبب
شوه. افضل‌خان‌ختک په«تاریخ‌مرصع» کی ددغو پیښو بشپړ بیان کښلی
او دغه پیښی یی د خپلو ستر گو لیدلو حالاتو په توگه په خپل دغــه
اثر کی راوړی دی . د جنگــ جگړی له تفصیل ورو سته لیکی :
« . . . خان‌جنت‌مکان(اشرف‌خان)چی په شگی ورغی چی‌له نظام پوره‌دوه
کروه فاصله لری ، زه یی و خان‌علیین مکان (خو شحال خان ختک)
وااستو لم چی که حکم وشی‌زه‌دخان‌علیین مکان په ملا زمت ور شم. خان
علیین مکان‌په سبب‌د آزردگی‌لیدل‌دخان جنت نښان قبول نه‌کړ. ویــی
فر مایل : هر گاه چی له دی مهمه‌واوجار وزی ، بیادی‌هاله ماو ووینی
خان جنت مکان هم په‌فرموده دخان علیین مکان په کناره تیر شه
بنادی پور ته زه بیا ور غلم، د خان علیین مکان لیدو ته. د شال خیره

یی را وا غوښته از روی مهربانی‌یی په خپل لاس زما په سر وتړلــــه اورا ته یی وفر مایل چی پلار دی ، یعنی خان جنت مکان ته ما ســـر – داری نه ده ور کړی په خپل اختیار سردار شوی دی تا ته ســرداری مــادر کړه . تسلیمات می په ځای راوړل .چی له خان علیین مکــان رخصت شوم ،وو تم دستار می له سره کو ز کــړ . په بغل کی می کښېښوه .دنیلاب په غاښـــی چی په خان جنت مکان پسی ورسیدلم دی دغاښی په سر ناست و .تماشایی دملك کړه ، چی‌زه یی ولیدم ، تبسم یی وفر مایه چی خان دی‌ولید ؟ دستار می له بغله وکښېه ، هر چی خان علیین مکان فرمایلی ووپه عرض می ورسول . خو شحال شه .وییی فرمایل چـــی دا دســـتار تبرك دی کښېـــی یي ږدی . نــور خان جنت مکان له ډیره لښکره سره په گنبت ورغی . . . » (۱)

مغولی حکومت دخو شحال لــه پاره دختمه په پیدا کیدو کـــــی لومړی نظر پر اشرف خان ار لوخو دهغوی په نظر د اشـرف خـان سکنی وزور بهرام هم ددی کار له پاره ور سپری و . خپله بهرام هم زیاته هڅه اره چی له مغولو سره ځان نږدی کــړی ، منصب او سر – داری خپله کړی او مغولی دولـت ته زیات مقرب شــی . د خپل دی فکر دعملی کولو له پاره‌یی زیاتی‌هلی ځلی و کړی . دلته نـــو تر تولو وړاندی بهرام په دی بریالی‌کیږی چی د مغو لو باور په زیاته پیمانه دځان خواته جلب کــړی . بهرام حتی مغولی صو بـــــه دار مهابت خان ته زیاتی ژمنی ورکړی‌وی . د بهرام هیله دا وه چی له خو شحال ورو سته باید همدی دقوم مشری اومنصب واخلی .خودډی هیلی دتحقق له پاره باید په لومړی‌گام کی اشرف خان له خپلی مخی لری کړی . دبهرام په زیاته لمسه مغول پر اشرف خان هم یو شـــه بدگو مانی پیدا کوی .ددغی بدگومانی یو بل عمده سبب خپله د

---

۱ـ تاریخ مرصع ۳۵۰ م

اشرف خان په وجود کی هم لیدل کیږی . په دی مانا چی هغوی ته په هره توګه چی و د اشرف خان په شخصیت کی دخو شحال دخصوصیاتو ځینی څرکونه خامخا لیده شول .

مهابت خان ته د بهرام له خوادا یقین ور کول کیږی چی هغه به دخپل پلار او وروور خلاف د هغه د هر حکم منلو ته تیار شی آن تردی چی که ضرورت یی پیښ شی‌نو ددواړو په قیدو لو به هم ډیل نه شی . مهابت خان په دی خبره‌هغه په شا وټپو لو . (۱)

په دی ارتباط ظفر کاکا خیل لیکی:

«د اشرف خان او بهرام خان‌تر منځه د حصول اقتدار په غرض کشمکش جاری و دا دواړه ورونه که په خپلو کی مخالف وو ، نو د پلار نه هم مخالف وو .

ځکه چی د دواړو ورونو مقصددحکومت مرسته او اعتماد حاصلول وو .پلار هم ددی دواړو نه ناراض‌و دهغه داخفګان دهغه دیوی اوږدی قصیدی نه ظاهردی ...لیکن داشرف‌خان او بهرام خان ترمنځ دا فرق و چی اشرف خان په څرګنده دپلارمخالفت ته ملانه وه تړلی او کله به یی دپلار څه نا فر مانی وکړه‌نو بیا به یی د هغه نه معافی و غوښتله ،لیکن بهرام خان عملا دپلار مخا لفت ته تیار شوی و . . . اشرف خان که د مغو لو منصبداراو په ظاهره کی د پلار نه مخالف او د هغه د پا لیسی نه ویز ارواولی په څر ګنده یی دپلار مخالفت ته ملا نه تړله او کله چی به یی‌مخا لفت و کړو نو بیا به یی د پلار نه معا فی و غوښتله ، ولی‌بهرام خان د مغو لو منصب ته ډیر لیواله و . په دی لړ کی هغه نه دوروور لحا ظ کو او نه دپلار . ځکه مغو لی حا کما نو بهرام خان‌دخیل مطلب سړ ی ګڼلو او د اشرف خان په رویه بی اعتباره،وو . . . . » (۲)

---

۱ـ دیوان هجری . (ج ـض)م،م.

۲ـ پښتانه دتاریخ په رڼا کی .سید بهادر شاه ظفر کاکا خیل ، یو نیور ستی بك ایجنسی پیښور ۷۸۹ـ۷۹ م ، م .

په دغه وخت کی څه نوری داسی پیښی راځی چی د اشرف خان هجری او دمغو لی صو به دار امیر خان تر منځ خوا بدی زیاتیږی او یا خو امیر خان غواړی چی بها نه و لټوی. بهرام هم په دغه وخت کی لـــه مکاری کار اخلی . د قوم په مشوره او جرگه هغه اومړی دخوشحال خان په پښو کی او بیا داشرف خان په پښو کی پریووت . اشرف خان هم هغه معاف کړ او له امیر خان څخه یی ورته منصب هم واخیست . خود هغی مکاری له امله چی بهرام لرله ، هغه داشرف خان په وړاندی توطیی جوړول بیا هم جاری وساتل .

## د اشرف خان زندانی کیدل :

دختیکو اود هند د مغولی دولت ترمنځ اختلافونه زیاتیږی . ددوی د روغی جوړی بیلا بیلو خبرو هم هیڅ سر ونه نیو . داشرف خان هجری یوه خپلوان دآزاد گگیانی په نوم دامیرخان سخت مخالفت کولو . هغــه د امیر خان له لاسه سوات ته پناه وړی وه او له هغه ځایه به یی پر مغولو حملی کولی . دی کار دصو به دار په زړه کی دهجری په مقابل کی زړه بداوی پیدا کړ . کله چی امیر خان وغوښتل چی کا بل ته لاړ شی نو له اشرف خان څخه یی هیله وکړه چی له خپلو سړیو سره یو ځای ته هم را سره په جلب کی لاړ شه . هجری دصو به دار دغــه هیله ونه منله اود خپل ځان پرځای یی هماغه بهرام له هغه سره جلب کی ملگری کړ . په دی کار له یوی خوا بهرام ته هغه مناسب وخت په لاس ورغی چی خپل ځان نور هم امیر خان اود هند دمغولی دولت ځینو نورو مقامونو ته ښه نزدی کړی .

داشرف خان په ژوند کی دیوی سختی اودیری غم لړلی حادثی هنگامی

رارسیږی .امیر خان له اشرف خان خخه اورنګزیب ته زیات شکایتونه کاږی او هغه ورته وایی چی داخبری په تا پوری اړه لری .اشرف خان د هند دمستبد مغولی دولت له خوازندانی کیدلو په بیلو عواملو په یوه جلا څپرکی کی بشپړی خبری وکړو .خو دلته غواړو چی د هجری دزندانی کیدلو پیښنه دهغه دخپل زوی (افضل خان) له لیکنی را نقل کړو .

«... امیر خان چی کابل ته لاړ ، بیا پیښناور ته رانغی ،په جلال آباد پاتوشه ،باد شاه ته یی وکښل چی زه په دالار دخیبر یاد کړ پو یاد بنګښ چی همیشه دروم دپیښبور محتاجی ماړه بویه او دوی چی صوبه دار په دا لاچی محال طلبی کاندی او دا دننګرهار ملك هم چی پښتنو ویران کړی دی لاودان شوی نه دی. که پادشاه حکم کا زه تر کابله او جلال آباده ګرزم دا ملك به هم ودان شی او پښتانه به هم ماته محتاج شی .بادشاه اختیار ورکړ .نور یی پاد شاه ته دخان جنت مکان شکوه شکایت ډیر ور کویښی پادشاه اختیار ورکړ چی ته صوبه دار یی ، هرچی پوهیږی هغه کړه .دخان جنت نښان حکم یی دقید را جه رام سنګه ته چی په جمرود وواستوه هغه زمیندار وقبول یی نه کړ ،چی داکار دمانه دی بیایی سید پهولا چی دشهامت خان زوی و، په پیښناور کی، هغه ته یی وکښل چی په هر فن وفریب خان جنت نښان .قید کا .راجه رام سنګه خان جنت مکان په ډیر خواهش جمرودته وباله دده په زړه کی هیڅ نه وو . دپاد شاه په دولت خواهش مغرور ورغی .په سن زر دوه نوی، آخر ثور یا اول جوزا را جا رام سنګهیو سرو پای یو آس ،یوه دغاړی دهکد هکی ورکړ ،نور یی رخصت کړ ورته یی اشارت وکړ چی په پیښناور مه ځه بیرون درومه .آخراز راه دولت خواهی ورغی ،دسید پهولا کره .پخپله ورغی چی اشنادی، ،دی وګورم نور به درومم ،هغه له

خدای تعالی همدا غوښتل ورته یی وویل چی ،ته کښینه ،زه کور ته لاړ شم چی طعام راستوم طعام وخوره هاله دروهه دی یی کښیناوه .
نور یی خلق تری چاپیر کړل . پروانه یی دامیر خان ورښکاره کړه، په قید یی کړ .
الله داد خان خویشکی چی په لنگر کوټ کی و ،بهرام په غالی ډیر کی‌و .دواړه په دا مصلحت‌شریك وو .هغو ته یی وکښل چی داهسی کار ما وکړ، اوس معطل نه بویه .تاسو سرای لره ور دروهی .یو دوه ورونړه مزور ،مکار محیل دموږ په قبیله کی وو .دمکاری په سبب به یی دموږ په قبیله کی کادی او بادی بلل ،دنوښهر یو بد طینتو خوریونه وو .هغه بدبختان له بخله ، لـه حسده ،له فقیر جمیل بیگ سـره فنیران شوی وو ،چی یو داهسی‌وخت یی بیا موند ،په داکش مکش په خیلخانه کی به گرځیدل . دمجنبانی یی کړه لکه روباه .خلق به یی دبهرام په لور مایل کاوه .خان‌علیین مکان هم په هغه او ان پیر شوی‌و .هغه به ورته ویل چی‌بهرام‌پیاز و ،اوس څه خو پوخ شوی دی، یعنی شیرین شه .خان دی هم‌دبهرام‌په کار را غب شی .مولف دکتاب‌په هغه اوان دشپاړسو ،اوولسو کالو. په داسن وسال چی دا هسی هیڅ تجربه دکارونو تر سره نه وه‌تیره،دغاړی شول .آخر هغه ورځ زه له سرایه وښکار ته وتلی وم ،لکه دزلمیو دستور دی ،هوا هوس می به کاوه .له ورایه یو سور ولید شه .گمان وشه‌چی څوك‌له‌رفقا وپسمانده راپسی راغی .اما چی نیز دی راغی‌وپیژند شه ،چی هغه جلب دار دی چی له خانه سره پیښاور ته لاړو .

معلوم شول چی څه اسیب وخان ته ورسید .په مجرد دلیدوپویه وسرای ته راغلم .په سرای باندی غوغاوه.هر څوك په خپل مال ،په خپل ځان گرفتار وو .ملاحظه دخلقو داوه چی‌اوس به فوځ رایشی .رایغلم یو ملا عثمان خدای تعالی یی غریق دبحر رحمت کړه چی دی نمك حلال قدیمی ددواړو خانانو و، خپل کور ،خپل مال یی هر څه ئړ شاوو .راغلی مسلح په دروازه کی دمحل ولاړ و،چی زه یی ولیدم راته یی وویل چی زر ننوزه دیحل عالم وباسه .دغره‌په له لور یی روان کړ ،دغره په لور .چی غره ته می عالم ورساوه،نور بیا رته راغلم .ملا عثمان په ځای ناست و .پس له هغه می حال‌مال وغره ته کړ .

نور زه ور غلم خان علیین **مکان**ته .لوی خان په نظام پورو .عابد خان یی را سره کړ .دسرور میلی‌ته راغلم .خان علیین مکان هم‌راپسی راغی .جرگی معر کی گډی شوی . بهرام دشیخ جیو زیارت ته راغی . راویی باله .خان علیین مکان دتمامی‌قبیلی اود اولس سره ورغی . زه یکتنها په سرور میله پاتو شوم .معرکه یی وکړه . بهرام مزور هومره تدویر وکړ چی خان یی فریفته کړ. په جرگه دا مقرر شول چی خان‌جنت مکان چی قید دی ،مغل دی یی خلاص کا .دباد شاه په حضور دی ووسی . منصب دی ورکا .دا زمان بهرام‌لکه مغل دوړاندی کړی دی ،هم دی دی اوسی.خانی یی‌په نامه دبهرام‌کړه...هر گاه نا امید شوم ،خبر راغی چی خان جنت مکان بادشاه په قلعه دگوا لیار محبوس کړ . . . » (۱)

---

۱ــ تاریخ مرصع (څلور سوه یونوی یم او څلور سوه پنځه نوی‌یم) مخونه .

اشرف خان هجری دهند دمستبدمغولی دولت په زندانونو کی بندی شو .دا (یو زرو دوه نوی یم ه.ق)کال و.هغه دگوالیار کلاته ولیږدول شو .په یوزرو اوه نوی یم ه.ق کال کی چی او رنگزیب عالمگیر په جنوبی هندوستان کی دبیجاپور کلا ونیوله ،نو لږه موده وروسته یی اشرف خان هجری هم له نورو بندیانو سره بیجاپورته بوتلو (۱) .

هلته هجری ،دغه دروه بلبل دبیچاپور په زندان کی دبیلتون سخنی شپی ورځی تیرولی او دلته په (روه) کی خانی بهرام ته پاتی شوله .دبهرام دلاسه چی هر څه کیدل دخپلو خلکو په وړاندی یی وکړل .په خلکو یی زیات ظلم پیل کړ او وژنی او لوټونی یی شروع کړی ..دبهرام په وړاندی دهجری‌دوزی‌افضل خان خټك مبارزه اوجگړه‌روانه وه .هغه ژمنه چی دبهرام له‌خوشحال‌سره کړی وه ،هغه یی هم په ځای نه کړه اود هجری دزندان کلونه یو کال په بل کال پسی اوږدیدلو.

هغه وخت چی هجری له وطن‌څخه جلا کړی شو ،نو دلته ددوی په کورنی کی او په مجموع کی په ټول قوم کی یو لړ گډوډی پیل‌شوی. دغه خبره دسکندر خان خټك لـه‌منظوم لیك‌څخه ډیره‌ښه څرگندیږی چی دیو «ترجیع بند» په بڼه یی‌اشرف خان هجری ته هندو ستان ته استولی و .ددغو حالاشو دښی څرگندونی له پاره دسکندر خان خټك دهغه منظوم لیك ځینی برخی رااخلو:

که پوهیږم چی دخلکو ماجرا کښنم
که دشوق یاد هجر قصی ستاکښنم
که شکوه کړم دفلك له‌گرد شونو
که دخپلی قبیلی وفا جفا کښنم

---

۱ــ پر گلشن روه دپوهاند عبدـلشکور رشاد سریزه (څلور اتیایم او پنځه اتیاتم مخونه .

یو په یو واړه وتاوته معلوم دی
دچا څه وفا جفا جدا ،جدا کښېم
دآشنا له جدایی می زړه وچاود
بس زیاتی خبری څه له ناآشنا کښېم
دیوه سړی له حاله طوماربو یه
یو، یو بیت به په احوال دهرهر چا کښېم
په مضمون په عبارت یی ډیرخوښېږم
داخبره په هر ځای ځکه بیا بیا کښېم :
که خورشید غوندی ښکاره خان به اټك شی
مدعیان به دخټکو ښا پیرك شی
ستا په تللو له خټکو محبت ولاړ
هم یی ملك ،هم یی عزت ،هم یی دولت ولاړ
کور په کور سره اخته شــول ؤوی او وروڼه
مهر ،مینه سره نه کا محبت ولاړ
زور زیاتی په رعیت باندی همیش شی
شفقت ،احسان ،انصاف او مروت لاړ
روح یی ته وی په صورت کــی چی ته ولاړی
نور دخاورو نوم په خلکو دصورت ولاړ
عیب یی ستا دحکومت په څادرپټ و
کل عالم ته شو رسوا چی حکومت ولاړ
کډی سپینی ګوتی توری کړی په غم کی
چار پرعکس شه وهندو ته صباحت ولاړ
ماوی نور احوال به ستا په خدمت وکښېم
خوښیده قلم په داخان سلامت ولاړ
که خوږشید غوندی ښکاره خان په اټك شی

مدعیا ن به‌لکه ستوری‌هسی‌ور ك شی ...
شرا شر دفوارو ځکـــــه قرار شه
چی فریاد یی تا پسی لیـــل‌ونهار شه
میوه داری و نی واړه بـــی‌میوی شوی
په فراق کی و چ کد یــــدسرو چنار شه
چی خندا یی دسهار په تنهاوکـړه
بی له تا هسی خا مو شـــ‌هغه آبشار شه
دتصویر څهرو له غمه ځـان‌خراش کړ
په هیڅ ځای یی مینه نه شی‌نا هموار شه
اوس بلبلی باندی گشت دبهار نه‌کا
چی همیش یی په اهاړ کـی‌چغهار شه
چی پره په دا مکا ن دو طن نه کړی
مگر خو ښ دتا مکا ن دهندو بار شه
په دیډ ن به دی بیا وا ړه‌جلوه گر شی
په راتله به دی بهار په هردیار شه
نور غمو نه د دنیا را څخـه‌ولاړل
غمجن زړه می ود ی‌کار ته‌په‌تلوار شه:
که خور شید غو ندی ښکاره‌خان په اتك شی
مدعیا ن به لکه ستوری‌هسی‌وزك شی ... (الخ) «۱»

خو اشرف خان هجری د مغولی‌دو لت له زندانو نو اوزنځیرو نو څخه نه‌راو ځی . دهغه ټول ژو ندله زنځیرو نو سره تیرېږ ی اوځکه خو له هغه نه دزنځیرو نو شا عرجوړیږ ی .د هغه شعر دهمد غـو

۱ ــادبی ستوری . دو هم‌ټوك(ح) داطلا عاتو او کلتور وزار ت، دکلتور او هنر ریاست ،دیار لس‌سوه نهه پنځوسم ش کال ، در ی سوه څلور څلو یښتم او دری‌سوه‌نهه څلو یښتم مخونه .

زنځيرو نو او زولنو آواز دی .دزندا ن دهمد غو تور تمو خو نو فريادو نه دی اود استبداد ، ظلم‌او ناروا پەوړاندی ديوه شا عرخپه شوی غږو نه . اشرف خا ن‌هجری‌اوږده کلونه پەز ندان کی پا تی کیږ ی. پەزندا ن کی د هغه دژوندحالات دسوز ، درد ، ما تـــــم، او غم حالات دی. هغه هره شيبه پەزندان کی دخپل ژو ند پەبر خەکی ديوه نوی تصميم لەپاره منتظردی.هغه دژ و ند او مرگ پەپو له ولاړ دی. لەوطن نه ليری دی . له خپلوخلکو او له خپلو خپلوا نو جلا دی او شايد ډير و ختونه بەتير يد ل‌چی هغه دکوم استازی له خو لی دکلی، کور او وطن له ځينو پيښوخبر شی . پد غه موده کی‌یوا زی شعر و چی دهغه دماتم د شيبـــــو ملگرتيايی کو له او يوازی قلم و چی د هغه دزړه آواز ته يی انعکاس‌ور کولو.

اشرف خا ن هجری پەز ندا ن کی‌و چی دخپل نا متو پلار، دستر مبارز شا عر او نو ميا لی‌خوشحال‌خان ختك‌له مړينی خبريږ ی.هجری ددغه‌غم لړ لی خبر داو ريد لو پەوخت کی هم‌لا دبیجاپور پەزندان کی پروت دی. هغه دد ی‌ماتم لـــەاو ښکو شعر جوړ وی او یوەډيره ښکلی مرثيه (ويرنه) تــــــــــر ی‌جوړ يږ ی . ديوه ليکوال پە قول: ((دجذ باتو او احساسا تو د زورسره چی ک ومه فنی ښکلا پە د ی مرثيه کی مو جودەده ، د پښتوژبی‌ډير ی کمی مرثيی ددی همسر ی کولی شی . پە دغی مرثيەکی ټول‌يو کم پنځوس اشعار دی . هريو شعر يی لکەچی خا ن جنــــــــت‌ښان اشرف خـــان هجری د خپـــل زړه پەوينو ليکلی وی »(۱).

دزندان پەتورتم کی‌اودزنځیرونو پەشرنگا کی دهجری لەخواد خپـــل

---

۱ ــ رو هی ادب. دويم جلد ،محمد نواز طائر، پښتو اکيډ يمی، پيښور يو نيورسټی . نو لس‌سوەاته اويايم ع کال دوو لسم ا و څوار لسم مخونه .

نا متوپلار په مرگ دکنبلی شوی‌مرثیی ځینی بر خی لولو :

همه غم لره مو جود ه د ا فنـــا ده
په خطه یی تل ژړا کمـــــه‌خنـدا ده
نه،نه ځای دخندا نه غلط می‌وو ی
بلکی دا همه ژ ړ ا لـــره‌پیدا ده
داما ن لور ی به چیر تـــه‌وی عا لمـه
دلږوا ړ ه دمر گی شو روغو غـا ده
دصفی اولاد رمه د ی یـــی‌لیوه شه
دم په دم یی ځکه خوری چی‌یی غزا د ه ...
... یعنی نن هغه امام ، د ننگیا لیـــو
په ډنبر ه غ ریب لاړ ډ کـه‌یی خوا ده
مسا فر شه هغه شیـــردجبالونو
چی ز هره ځنی او بــــه‌داو رنگشاه ده
نه‌یی ځو یه پری حا ضر نه‌برادر و
ساه یی قبضه له غمو نـــو په صحرا ده
نه‌یی مخ د خپلوو لیـــــده‌په ستر گو
نه‌یی کړ ی چا په رنځ کـی‌دلا سـا ده
لایی رب په حال خبر یازه‌پوهیــــږم
چی له خپلو یی لید لـــی‌څه جفا ده
د جبال غر څه یی ژ اړ ی په‌زاریو
دسړ یو باندی هی نه یـی صدا ده
مرور له خلقه لاړ د ی را بـه‌نه شی
ستا په با ب یی د عــــا کړی دبداده ...
... دخو بی معد ن چی تـــالیده خا طره
په صحرا یی د غر بت‌خونه‌تنها د ه

هغه وا ف چي در فشا ن و په وگـړی
نن‌یی گو نگه په لحد ژ بـه گویا ده
چی چرا غ دهنر ز مکـــــی پوشیده کړ
چی یی زه په ژړا ډو ب کړمه سزاده ...
... دزړه جو ش به تمام‌نه‌شی په‌و یلو
طو لا نی قصیده تم پـــــــه داوینا ده
نور به ستر گ یږ ه‌مخ وا دبنادی نه‌کا
که‌په تا د هجری مینـــــــه په ربنتیا ده (۱)

اشرف خان هجری دغه‌و یر نه‌دخوشحال په مړینه (یوولس‌سوم ه.ق کال) و لیکله . سره له دی‌چی‌دهغه په مرگ نوری ویر نی هـم لیکلی شوی دی خوپه مقایسو ی‌ډول به‌یی ډیر ی لږ ی له دی‌سره سیالی‌وکړی شی اودا ځکه چی د هجری دروانی حالا تو اود سوزاو ساز انعکاس هم په‌کی پـــرو ت‌دی.

اشرف خا ن هجری خوار لس کاله د هند دمغو لی مستبـــــد دولت د استبداد په زندانونوکی پاتی شو او د ژوند ورروستـــــی شـبیبی یی هم په همدغه تورتم کـی‌له همدغو زندانونو او له همدغـــو زنځیرونو سره تیری کړلی .

**مړینه :**

اشرف خان هجری له خوار لس‌کلن زندان وروسته ،هماغلته په زندا

۱ – دیوان هجری یو سلودوه‌ځلو یښتم او یوسلو اته‌ځلو یښتم مخونه.

نامدار خان ،بل افضل‌خان او بـــل‌شمشیر خان دی »(۱)

همدارنګه افضل خان ختك‌په‌یوځای کی د ځینــو کسانو د نومونو د اخیستلو په لړ کی لیکی چی«. . ..زه له خیر آباده رخصت شوم .کورته راغلم .د مال حال د فرزندانو سره،د قبیلی عالم لکه ورور عبدالله خان، محمد خان او ګوهرخان او عبدالرحمن‌دحکیم خان هذا القیاس د توکه‌توکه حسن خیل اتمام اولس د ځینی راسره‌نظام پور ته راغلم. . . .».(۲)

په دی اساس د افضل خان پـــه‌ورونو او د هجری په زامنو کـــی د «عبدالله خان» په نوم د یو بل تن‌پته‌هم را کوله کیږی .

---

۱ــ وږمه (مجله) ،د ادبیاتو پوــهنځی ،دیارلس سوه څلویښتــم ش، کال (لومړی او دوهمه ګڼه)، (اشرف‌خان هجری )،صدیق الله رښتین . څلور دیرشم م.

۲ــ تاریخ مرصع ، ٤۱۱مخ.

## دهجري د زنداني کيدو عوامل

يو پاړو په دکن نه شته چي مي‌دم کا

گرفتار په کنج و کاو د ا ژدها شوم(۱)

کله چي د اشرف خا ن‌هجري دژوند د دغې ستري تراژيدي يعني د هند د مغولي مستبد دولت له خوا دهغه د زنداني کيدلو پر علت د خبرو تکل و لرو نو يوازي د يوه علت ياپه‌مشخص ډول د ډيرو څرگندو علتونو په لټون کي به له زياتو ستونزوسره‌مخامخ شو .دا ځکه چي له يوې خوا هغه حوادث او هغه علتونه د زمانوپرحوادثو د تيريدنگ او هيرتابه تور تم له موږ حتی تر اوسه هم په ډيرو برخو کي پټ (او يا لږ تر لږه تت) ساتلي دي ،او له بلي خوا دبيلابيلـوروايتونو په لړ کي يو مشخص ياڅرگند علت ښکاره کول له تحقيقي‌پلوه‌يو له ستونزو ډك كار او لټون بر-يښي .بيا هم‌دلته لازمه ده چي داشرف‌خان هجري د زنداني کيدلو پرځينو

---

۱ــ ديوان‌هجري .(يوسلو دريم)م.

عواملو خبري و کړو او دغه علتونه‌په جلاجلا توګه څرګند کړو :

۱ـ د اشرف خان هجري د زنداني‌کيدلو په باب په لومړي ګام کې ځيني داسي روايتونه موجود دي چي‌ګوندي‌د هغه د زنداني کيدلو علت د شيخ رحمکار (زيړي کاکا) د ښيرا ياخپګان‌له کبله و .خبره دا ده چي ويل کيږي د اشرف خان هجري او د نوموړي «زيړي کاکا» د زوی شيخ ضياءالدين تر منځ څه خپګان پيدا شـــوي و.د «تواريخ خورشيد جهان» ليکوال‌په خپل ياد شوي اثر کي ليکي :

«. . خوشحال خان چون به خانه‌رسيد فرزند خود اشرف خان را بر جاى خود صا حب د ستــــا رو مختار مقرر کرده ،بهرام خان‌برا در دويم اشرف خان که از پدر خودمخالف بود ،به سبب اين دستار مختاری دشمن بر پدر و برادر شده و ضياءالدين فرزند کاکا صاحب اعانت‌بهرام خان نموده ازين سبب اشرف خا ن‌ضياء الدين را قيد کر د و ازين‌سخن اورنګزيب ناراضي شده ،اشرف خان‌را مقيد ګردانيد . . .»(۱)

اروانښا د استاد دوست محمد خان کامل مومند د تاريخ مرصع په سريزه کي د افضل خان ختک پـــه‌هکله د ځينو انتقادی ټکودڅرګندو‌ لوپه لړ کي پر هغه ا نتقاد کوی چي‌ولي افضل خان ختک د هجري‌دزوی او د پښتنو د مؤرخ په عنوان له دغه‌ډول روايتونو ځخه ډډه کړی او دړد يا تائيد په باب يي پټه خوله پاتـــي‌شوی دی .نوموړی استاد وروستـــه ليکي :

«له ډيري مودی را هيسي دا روايت‌مشهور دی چي‌د حضرت شيخ‌رحمکار رحمة‌الله عليـــــــــه د فر ز ند شيخ ضياء الـــــــدين صاحب وفات له طبيعي اسبابونه وواقع شوی ،بلکه موصوف دمؤلـــف (افضل خان ختک ) د پلار په ويناسړيو يي شهيد کړی و . واييي چـــي

۱ـ تواريخ خورشيد جهان .(دوه‌سوه څلور څلويښتم )م.

زهر یی ور کړی وو او هم له دغــه‌قبله ستایلی شیخ صاحب په عوامو کی د شهید بابا په نامه مشهور د ی‌او د تاریخ خورشید جهان د مؤلف شیرمحمدخان‌صاحب‌گنده‌پور‌اوددوی‌په شان د نورو تاریخ نویسانو غیــر مستند بیانونه و منل شی نو اورنگ‌زیب هم د یاد شوی جرم په پاداش کی د اشرف خان د گرفتاری او قیدحکم کړی و .

هر کله چی د اشرف خان گرفتاری‌په کال یو زرو دوه نویم ه، کی‌شوی وه او په وسطی هند (گوالیار) اوجنوبی هند (بیجاپور) کی له‌بنده هیچیری نه و راستون شوی، بلکه هم په بند کی حق رسیدلی و نو د شیخ ضیاء الدین صاحب د وفات سا نحه‌به‌هم‌د یاد شوی کال نه آگاهو یا په دغــه کال کی شوی وی . . . د خوشحال بابا هم د ستایلی شیخ سره‌اختلافات وو .. تر څو چی زما د محد و دومعلوماتو تعلق دی ، د شیخ ضیاء ــ الدین صاحب او د اشرف خان مقدمه‌کی د مؤخرالذکر خلاف‌د الزام پــــه تائید کی د دواړو تر مینځه د ډیرو بدمزگیو و نه‌پس‌د شیخ صاحب‌موصوف د خان مذکور په حبس کی راتلل اونا څاپه وفات کیدل او د هجری هغه اشعار دی چی د هغه دا احساس تری‌ظاهر یږی‌چی دهغو له لاسه څه‌داسی کار شوی دی چی د حضرت شیــــخ‌رحمکار رحمة‌الله علیه سره د عقیدت او په حقله یی د ادب او احترام منافی‌دی او په پاداش کی یی الله جل شانه د قید او بند بلا ور دو څاره کړ ی‌ده‌اگر که دا خبری څــان له د الزام د ثبوت د پاره کافی نه وی خو دملزم‌د زوی خاموشی چی د پښتون دمؤرخ کیدلو ذمه‌دارانه حیثیت یی قبول‌کړی‌دی ،هغه شك لره چی د دیو خبرود ملزم خلاف پیدا کیږی ،ډیر زیات‌تقویت ور کوی .»(۱)

همدارنگه د پښتنو نامتو محقــق‌همیش خلیل د هجری د دیوان پــــه سریزه کی په دغه ارتباط لیکی :

---

۱ــ تاریخ مرصع (د استاد کامل‌سریزه ).(لا‌ــ لج)م،م.

«. . .اکثر خلك دا شعر :زه په‌بند د اورنگ نه یم چی به خلاص‌شم
بندی کړی شیخ رحمکار زیړی‌کاکا یم

خوشحال خان‌ختك‌سره منسوب‌کوی هالانکه دا د اشرف خان هجری شعر دی ،په تحفة الاولیا کی قاضی‌میر احمد شاه رضوانی نه هم داغلطی شوی ده او دغه شعر یی خوشحال‌خان ته منسوب کړی دی .حالانکه د خوشحال خان ختك‌په ټول کلام‌کی‌ددی شعر هیڅ پته نشته .د دغه شعر نه علاوه هجری د کاکا صاحب (کستیر گل ) په حقله نور شعرونه هم ویلی دی لکه :

میړی کله په.لامبو اوځی له ډبه
مگـرمل می په همت زیړی کستیر شی

یا: د زیړی کاکا په گور لاسونه‌کیږده
قدیمی‌مهر دی شته که اوس بدل شو

د کاکا صاحب د یو زوی میا ن‌ضیاءالدین او هجری تر منځه ناچا کی وه ،او د هغی وجه دابیانیږی ،چی میان ضیاءالدین د اشرف خا ن هجری خلاف دبهرام خان حمایت‌کولو .په دغه وجه د میان ضیاءالدین او اشرف خان هجری سره خپلو کی‌نه لگیده .

هجری د خپلی گرفتاری وجه دمیان ضیاءالدین سره د دښمنی په‌وجه د کاکا صاحب بددعا گڼله .په دغه‌وجه د کاکا صاحب سره د عقیدتمندی او د هغه په بزرگی د پخـــی‌عقیدی له مخه د هغه په کرامت دقایلتوب اقرار کوی .»(۱)

همیش خلیل د همدغو لیکنوپه لمن لیك کی بیا دا هم زیاتوی چی:
«ځینو کتابونو کی‌دمیان ضیاءالدین‌او اشرف خان هجری د اختلاف وجه

---

۱ــ پر «دیوان هجری» د همیشـ‌خلیل سریزه .(تــ ث )م،م .

دا بیانیږی چی د بهرام خور پهمیان ضیاء الدین واده وه .هجری او بهرام یی‌دوه‌ناسکه وروڼه بنودلی‌دی‌حالانکه دا خبره غلطه ده ،هجری او بهرام‌خان د یوی مور ځامن وو .»(۲)

د دغو روایتونو په برخه کی لاموږ نن هم څه داسی مستند موادنه لرو. لکه چی استاد کامل مومنداو ځینو نورو څیړونکو چی اشاره ورته کړی ده، په تیره بیا یی دهجری په خوښه او لمسون د شیخ رحمکار (زیږی کاکا) د زوی د وژلو مسئله‌یوازی د روایتونو په بنه را وړی ده او لاد دغــــــــــــی پیښی په بــاب بشپړ او منونکی سندونه نه شته دی. همدا رنگه د هغه بیت په برخه کی‌چی هجری خپل بند د شیخ رحمکار (کاکاصاحب) د بنیراوو گنی هم‌اختلاف شته دی. د فراقنامی پهسر یزه کی د دغو ټکو د ځرگندولو پهلړکی پیاوړی محقق زلمی هیوادمـــل کاږی :

«شمس العلما قاضی میر احمدشاه رضوانی په تحفة الاولیا کی د خوشحال نیول کیدل‌او دبند عامــل‌د شیخ رحمکار کاکاصاحب(یوزرو- دری شپیتم ه،ق مړ) بنیراوی گنی؛ وپه دی باب کاږی : «. . ملك خوشحال سردار قوم ختك بهسبب‌بد دعایی جناب کاکا صاحب همیشه ذلیل و رسوا می ماند .و آخر اورنگ‌زیب عالمگیر او را قید کرده بهعندو ستان برد .چنانچه او در زندان این‌شعر حسب حال خود به افغانی گفت:

زه په بند د اورنگ نه یم چی‌بهخلاص شم

زه بند کړی رحمکار زیږی کاکا یم

د مرحوم قاضی میر احمد شاه‌دغه‌نظریه کوم علمی اساس نه لری اوپه روایاتو بنا نظریه ده .خوشحال خان‌ختك د شیخ رحمکار کاکا صاحب‌تر

---

۲ـ همدغه اثر .ثـ لمن لیکم.

مړینې (۱۱) کاله وروسته په اورنګ زیب بندی کړی و او هغه لوړ بیت چې مرحوم رضوانی خوشحال ته منسوب کړی دی ، دا هم د ده په آثارو کې نشته او د اشرف خان هجری د دیوان د یوی خطی نسخې په حاشیه کې کښل شوی دی او د دیوان مقدمه لیکونکی ښاغلی همیش خلیل په دی باب کښلی دی چې دغه بیت د هجری دی . اما د خوشحالیات مؤلف محترم سرفراز خان عقاب ختک کښلی دی : «او دا شعر یې د چاپ دیوان په یوی ښندی ټیکه دی او په مقدمه کې یې په ناجایزه هجری ته ور منسوب دی . دا شعر د دیوان هجری د یوی نسخې په ښنډی د یوی داسې غزلې سره لیکلی شوی دی ، په کومه کې چې کاکا صاحب یاد هغه زوی آزاد ګل ته اشاره قدری نشته او چا د هجری د وفات نه وروسته وضع کړی او د هجری د کلیات د یوی نسخې د یوه غزل په ښنډه یې لیکلی دی .

د قاضی میر احمد شاه خبری د خان د بیاض دغه کښ نی هم ماتوی:

«. . . په زبان در افشان یې ووی چې ورځـــــــــه هر مشکل
چې در پیښ شی ، حق تعالی به یې په تا آســـــــــــان کا

تمامی عمر کې دا رنګ صریح دعا په حق د هیچا فرمایلی نه وه چې نصیب د دی ا حقر شوه .»

دغه دعا د خان د کښنو له مخې د کاکا صاحب له وفاته یوه ورځ د مخه شوی وه .»(۱)

په دی توګه موږ وینو چې د اشرف خان هجری د زندانی کیدلو په عواملو کې دغه عامل ، یعنی اشرف خان ته د شیخ رحمکار زیړی کاکا د ښېرا موضوع د زیات تأمل وړ ده . هجری د حضرت کاکا صاحب له وفاته زیات کلونه وروسته زندانی کیږی او دغه خبره یوازی د روایتونو په بنه د غور وړ ده. که فرضاً د هجری په دیوان کې د دغه ډول خبرو خواته څه اشاری

---

۱ــ فراقنامه .د زلمی هیوا د مل سریزه او تعلیقات .(څوارلسم ا وــ پنځلسم مخونه )

هم شته‌دی (۱) نو د هغه په اعتقادپوری یی مربو طی گڼلی شو .همدا رنگه دهجری‌اومیا ضیاء الدین‌دااختلاف مسأله که هر څه وی او که هرڅو مره جدیت و لری ،نه شو کولی چی‌په بشپړه توگه یی د هند دمغولی دو لت له خواد اشرف خان د زندانی‌کیدلو عمده او اساسی علت و گڼو.

۲ــ د اشرف خان هجری د زندانی کیدلو په موضوع کی بایددبهرام هلی ځلی د یوه عمده علت په توگه‌تر زیات غور لاندی راشی .لکه چی مخکی مو هم د اشرف خا ند ژوندلیك په کښلو کی اشاره ور ته کړی ده،د هجری او بهرام تر منځ بدی په‌اوږدی گام کی د مؤرخینو په وینا د

---

۱ــ د دغه بیت په باب چی :

زه په بند د اورنگ نه یم چی‌به‌خلاص شم

بندی‌کړی شیخ رحمکار زیړی کاکایم

موږ مخکی هم د څیړونکو دااختلا ف تکو ته اشاره و کړه .لکه چــی ښکاری دغه بیت د هجری د دیوان‌دیوی قلمی نسخی په حاشیه کی کښل شوی دی او د اشرف خان هجری دگڼلو ا و نه گڼلو په موضوع کی یی بیا هم زیات دقت او تحقیق ضروری‌بریښی که دغه بیت د هجری خپل وی او که نه هجری څه دغه ډول نورشعرونه هم لری چی په‌همدی موضوع پوری اړه لری لکه :

د زیړی کاکا په گور لاسونه‌کیږده

قدــیمی مهر یی شته که اوس بدل‌شه

یا داچی :

زه گناه گار یم زیړه کستیره

د نوروډیرو ،ولی ستا په تیره

صغیر چی خطا شی کبیر یـــــی عفوه کا

بنده‌معاف کړه ماه منیره

اقتدار د حاصلولو له پاره وه .(۱)مغولو په لومړی ځل غوښتل چې له خوشحال نه وروسته هجری د خپل ځان کړی .په دی کار کی تر یوه حده بریالی هم شول خو وروسته یی بهرام د خپلو اهدافو په سر ته رسولو او پوره کولو کی تر هجری د ځان له پاره وړ و گڼلو . بهرام هم و غوښتل چی ځان تر ټولو وړاندی مغولو ته نږدی کړی او د اشرف خان هجری پر ځا ی خپله دی مشر او سردارشی د خپل دغه مرام له پار ه یی له هیخ ډول هڅو ډډه ونه کړه .ځان یی په زیاتو هلو ځلو د هند د مغولی دو لت واکمنو مقامونو ته نږدی کړ او دخوشحال خان ختك او اشرف خا ن هجری په وړاندی یی جگړی و کړی

د«ارمغان خوشحال» د سریزی شاغلی لیکوال هم وایی چی :«د بهرام به سازش سره اشرف خان د مغلو په لاس بندی شد و .»(۲)

د اشرف خان هجری په بندی کیدلو کی د بهرام د ناځوانو هڅو په علت زموږ د تاریخ خیړونکو تر نورو ټولو علتونو او انگیزو زیات او اسا سی ټینگار کړی دی . بهرام خا ن له مغولی مستبد د و لت سره د ټولو تعهداتو منلو ته په د ی شرط چمتو شوی و چی هجری له منځه لری کړی او مغولو دغه د خپل ځان خنډ او د بهرام د خانی او مشری خنډ د تل له پاره له مخی لری کړ .

۳ـ د هجری د زندانی کیدلو په علتونو پسی د لټون په سلسله کی یوه بله موضوع د هند د مغولی مستبدو لت په وړاندی د پښتنو د پر له پسی مبارزو د بهیر یوه لړی ده .دغـــو مستبدو واکمنو مقامونو نه یوازی پښتانـ نه ،بلکی ټول هغه خلك او هغه کسان د ځان غلیمان گڼل چی له ډولو نو څخه په یو ډول د هغوی د شومو اوله غرضه ډکو پلانونو په وړاندی او د هغوی «داولسو

۱ـ پښتانه د تاریخ په رڼا کی سید بهادر شاه ظفر کاکا خیل.(اووه سوه نهه اتیایم )مخ.

۲ـ ارمغان خوشحال ،د سیدرسول رسا مقدمه .(دوه پنځوسم )مخ.

نو او سیمو د لاندی کولو » په لاره‌کی یی ځه خنډ پیدا کاوه .خوشحال او هجری دواړه به په هر ډول چی‌وومغولی مستبدو واکمنانو ته په دغه لاره کی د خنډونو په توګه ښکاره‌شوی وی .استاد عبدالحی حبیبی لیکلی دی :

« هجری دوطن غوښتونکو په ګناه‌مغولو بندی کړی و .»

« هجری دوطن غو ښتنی په‌ګناه‌الله ریښتین په یوه مقاله کی لیکلی‌وو:

«د خوشحال او اشرف خان‌دبندی کیدو په علتونو کی نورو لیکوالو ډیر څه لیکلی دی، مګر که چیر ی‌مونږ د تاریخ په پټو پردو کی سر ور ننباسو او د تاریخ په فلسفه او علت‌پسی وګر ځو نو هلته بیا دا خبره پوره جو تیږی چی دخوشحال ،اشرف‌خان یا د دغسی نورو پښتنو مشرانود بندی کیدو علت یوازی د خپلواکۍ‌ژوند غوښتنه وه‌او بس .پښتنو خپلوا کی او د عزت ژوند غوښته او مغولود دوی ځپل ،نتل‌او بی واکی‌غوښتله . . . د پردو حکومتونو په خیال په‌یوه اولس کی د یوه او هوښیارسړی پیدا کیدل لوی جرم دی او دغه دخوشحال ،اشرف خان او داسی نورو ملی پښتنو ګناه وه .خوشحال خان‌خپل هنر د ځان تاوان لیده او په دغه ګناه نیول شوی و ،اشرف‌خا ن‌هم د پلار یوپوه ،یو هوښیار ،دمشری وړ زوی و . د ده ګناه هم‌دغه وه، اورنګزیب او د ده صوبه دارانو سید امیر خان خوافی ،مهابت خان او نورو ،دی په همدغه جرم ځوځو ځلی نیولی و ،خو د ویری او تمی ترمنځ‌کشمکش روان و ،آخر اشرف خان د همیشه د پاره د امیر خان نومی صوبه دار د چل او ټګی په دام کی کښیو وت »(۱)

سره له دی چی اشرف خا ن‌هجری د هند د مغولی مستبد دولت

---

۱ــ پښتانه شعرا .لومړی ټوک .عبدالحی حبیبی .کابل ،دیارلس سوه شلم شمسی ، (یوسلو اویا یم)م.

له خوا دځه وخت له پاره د خپلوخلکواو خپل اولس په وړاندی و دریډ ،
خو وروسته مغولو ته جوته شوی وه‌چی هجری لکه د خپل باتور پلار په
څیر د پښتنو د ریښتینو مشرانـــــوحیثیت لری او نه شي کولی چی تر
پای پوری د دوی په خوښه لاړ شي‌د هجری څوارلس کلن بند زموږدغی
خبری ته لا قوت ور کوی ،او که فرضاً د هجری د زندانی کیدلو علت
کومه بله موضوع وای ، کیدای شوول‌چی له څو کلونو او څه مودی ورو-
سته هغه بیر ته له زندانه څخه راخوشی شوی وای.ښکاری داسی‌چی
د اشرف خان هجری او مغولو ترمنځ‌اختلاف یوه قوی ریښه لری .ښایـــی
هغوی دغه ډارلرلو چی که هجری له‌زندان څخه خوشی شي نو خامخابه
په مجموعی ډول د مغولو په وړاندی‌د پښتنو په را پاڅولو او را هڅولو‌او
مبارزه او جګړه کی د مخکښ او یامخکښانو په توګه اغیزمن نقش ولو-
بوی .او که د اختلاف بنسټ په داسی‌موضوع نه وای ،نو شاید د دومـــره
اوږده او ابدی زندان موضوع له‌مغولو سره په دومره جدیت نه وای‌مطرح
په لنډیز سره باید ووایو چی‌که‌اشرف خان هجری زموږ د وطن پـــه
تاریخ کی تر یو وخته پوری د خپل‌اولس په وړاندی دریځ لرلو او دځـــه
وخت له پاره یی حتی‌دمغولو په پلوی‌د خپلو خلکو پر ضد په جګړو کـــی
ونډه واخیستله ،خو د هغه د ژونـــدوروستیو کلونو او په تیره بیا دهغه
څوارلس کلن زندان او هماغلته پـــه‌تورو زندانونو او زنځیرونو کی‌دهغه
مرګ ،د ژوند د اوایلو هغه لوړی‌ژوری او هغه دریځونه هم وویـنځل .په
ځانګړی ډول دا چی هغه په خپل‌ټول‌څوارلس کلن زندا ن کی هماغسی‌په
خپل هوډ ولاړ پاتی شو او هیڅکله‌یی په زندانی سختنو او غم لړلوشیبو
کی د تملق او دچاواکمن د ستاینی‌شاعری و نه کړه ،هلته یی هم مینه

---

١- وږمه ،دیارلس سوه څلویښتم‌کال ،لومړی او دوهمه ګڼه .د صدیق
الله رښتین مقاله . (دوه دیرشم )م .

و کړه ،امید یی و کړ او د واکمنی دظلم زور غندنه یی و کړه او د خپــل وطن د غرونو ،رغونو اوښکلیـــو دښکلا نغمی یی و غږولی .

د هجری داوږدو کلونو زندان او په زندان کی د هغه مرگ زموږ دوطن د مبارزو په تاریخ کی او زموږ دادبیاتو دتاریخ په پاڼو کی هغه ته دیوه «باتور» «قهرمان» شاعر و یاړ ورو با ښه.

# دهجری آثار

دهجری آثار او شعر ی هستونی‌زموږ دادبیا تو دتاریخ خورا پیا-
وړ ی او له سوز او ساز څخــــه ډکی بیلگی دی . داشر فخا ن-
هجری ختك په شعر ی راپا تی‌آثاروکی موږ ته د هغه دلوړ ی‌شاعری،
لوړ تخیل او ژور احسا س ډ یره ښه پته لگیدلی شی .

دهجری ټول او بشپړ آثار ،له‌بده مر غه لکه زمو ږ دکلا سیکو او
لرغو نو ادبیاتو دنورو زیا تـــوآثارو په څیر له منځه تللی او یاله
منځه وړل شوی دی او تر مونـــږه‌پوری نه دی را ر سید لی، حـــتی
یواز ی شعر ی آثاریی هم دبشپړوشعری آثارو په‌توگه هیڅکله نــــه
شو شمیر لی . دا ځکه چی هجر ی‌به زیا ت شعرو نه او زیا ت آثار
کښلي وی . په‌تیره بیا چی د پر دیسی په څوار لس کلن ز ندان‌کی
هغه له کاغذ او قلم پر ته بل یاراوآشنا نه در لود. هغه دغم‌او ماتم
ډشیبو ټول تبسکین په خپلوشعرونوکولو . لکه چی هغه خپله‌وایی:

ما هجری ته یی هجرا ن دکن لمبه کړ
ځکه تل دیار له غمه در فشــانیــــم (۱)

خود هغه دغه له سوز او ساز څخه ډك آثار او اشعار به بشپړه توگه ځکه لا س ته نه دیرا غلیچی یو خو په مجمو عی ډول زموږ دپخوا نیو ادبیا تو آثار زما نو ډیر لږ تر مو ږ را رسبو لـــــــی او خوندی ساتلی دی ٔو له بلیخواهغه ټول شعرو نه او آثار دمغولی استبداد له زندا نو نو څخه هم نه دی راو تلی او څه ر نگه چــی اشرف خا ن هجر ی هما غلته پـهزندا نکی مړ شو ی دی نو زیا تره آثار بهیی له مرگ سره. سمخاوری ایری شوی وی . لکه چی استا د عبد الحی حبیبی په(( پښتنا نــــهشعرا)) کی د خیبر مجلــــــی د نو لس سوه دری دیر شم ءدمار چدشماری په روایت لیکی :

((دازړهسوی شا عر چیو فاتشو. اشعار یی دمغولو د ظلم په اورکی دیری شول )) (۲).

بیا هم هغه څه چی مو ږ ته راپاتی دی دهجری د لوړ ې، ښکلی او خوږی شا عری ډیرت ښـــــینمو نی یی بللی شو.

۱ ــ دیوان :

داشرف خا ن هجر ی دیوا ندپښتو دکلا سیکو ادبیاتو یو ډیر غوره اثر شمیرل کیږ ی . دهجریدیوان دقصا یدو ، غز لو ،قطعاتو او ربا عیاتو یو پهزړه پور یجونگ دی(( دهجری دیوا ن د پښتـــــو پهکلا سیکو متنونو کی ډیر په زړهپوری متن دی . له هنری اوشعری خوا بر سیره ، یی تاریخی او لغویخوا هم دیادو نی وړ ده، داد باو

۱ ــ دیوان هجری یوسلو دویمــــــــــخ.
۲ــ پښتانه شعراء . لو مړیټوك عبد الحی حبیبی . یوسلو اویایمخ

تاریخ محققین بنه استفا دہ څنې کولای شی ))( ۱ ).

قصیده ، داشرف خا ن هجر ی‌ددیوا ن یوه څلیدو نکی بر خه‌د ه. دهجری په قصیدو کی لـه عشقی،مسایلو څخه چی راتیر شو ، ډیر داسی مسایل هم په کی ځـــا ن‌راخرگندوی چی تاریخی ارزښت لري. (( دپښتو ادب په تاریخ کی‌قصیده)) نو می اثر کی لولو :

(( اشرف خان هجر ی د ختکود کهو ل یو پوخ او پیاوړی قصیده سرادی .دده په قصیدو کی دوطن‌دبیلتانه ، درد او سوی پټ پروت دی اودی بیلتون دده کلام ته‌خاص‌اثر او رقت اود اتشینو احساساتو نودوا لی اودو طنی اشعارو خا ص‌رنګ، او آهنګ ور بخښلـــــــی دی ... :) (۲).

دهجری دقصیدو په‌با ب پرو فیسر محمد نواز طائر لیکی:

((... خو شحال بابا په پښتــوشـ عری کی د قصید ی یـــو داسی انداز قایم کړو چی پښتو اوپښتو نو، له یی‌په‌کی ژو ندی کړل. ددی قصید ی انداز نه خود شا هـــــی‌در بارونو هغه سر کوز ی‌وکوم‌چی (دنورو ژبو ځینو) قصیده گــــو شا عرانو خپل کړی‌و اونه داتش پند او نصیحت‌و .دخو شحا ل قصیده یقینا چی دهغی آزاد ما حول ترجمانه‌وه ، په کوم کی چـــــی‌دپښتو ن شخصیت جوړ یدو .ددی قصیدو معیار دومره او چت او لوړوچی دخوشحال خا ن نه پس نه‌خو چا دغه معیارقایم و ساتلی شو اونه‌چا په دغی میدان کی تر لر ی

---

۱ ــ کابل مجله ، دیار لس سوه‌شپږ پنځوسم ش ، پنځمه شماره ، داشف خان هجری د.یوان هیوات مل (مستعارمحمد رفیق)شپږ پنځوسم‌مخ

۲ــ دپښتو ادب په تاریخ کی قصیده .پوها ند عبد الحی حبیبی دافغا نستان دعلو مو اکاډیمی .دژبو اوادبیاتو انستیتو ن.دیارلس سوه اووه پنځوسم ش څلوراتیایم‌ـ پنځه اتیایم مخونه .

پوری یون وکړی شو . یـــو دخوشحال بابا مشر زوی اشرف‌خان هجری دغه روایت تر څه حـــدهوسما ته ... ))(۲).

دهجری ددیوا ن له ښکلـــواولوړو قصیدو څخه چی راتیر شوو هغه ددیوا ن دغز لو ،تونواوخلو ریزو برخه هم دلوړی شاعـــری‌او ژور تخیل ډیری لو ړی بیلگـــی بللی کیږی. په‌تیره بیا دهغه غزلی دسوز اودرد دبیان او تصو یـــرله اړ خه دهغه ښکلی شعـــر ی آثار شمیر لی شی .

**۲ـ فارسی دیوا ن :**

اشرف خا ن هجری په فارسی ژبه هم ښه او خوږ ه شا عر ی کړی ده.

دهغه د خپلی وینا له مخی،شعریی له‌پښتو څخه په فارسی کی لا لوړ او ښه دی:

په اشعار یی دپښتو فار ســی‌تیر ی‌کا
که هجری په ذات ختك دروه‌پښتون دی (۱).

او همدا رنگه په‌یوه څلور یزه‌کی هغه وایی :

په اشعار چی دفارسی سخنرانی‌کړم
په‌لحد کی اارواح خوښ دخاقانی‌کړم
دپښتو ژبی شاعر په زمان کو مدی
چی‌یی زه په دا هنر دخان‌ثانی‌کړم (۳)

دهجری دشا عری په با ب تل‌داخبره شوی ده چی هغه په‌پښتو

---

۱ ــ رو هی ادب ،دویم جلد . محمدنواز طائر ،پښتو اکیډ یمی ، پیښور یو نیورسټی،نو لس سوه‌اته اویایم ع .

۲ــ دیوان هجری ، څلور سوه‌دوه اتیایم مخ.

۳ــ دیوان هجری ، پنځه سوه‌اووه اویایم مخ.

او فارسي دوا ړو ژبو شا عر ی ګړی ده (۱) له‌بده مر غه، چي په چاپ شوی بنه یې دفارسي شعــريوازی څو نیمګړ ی نمو نې دچاپي دیوان په‌پای کي راغلي دی خولکه‌چي ټولو خیرو نکو دا خبره‌کړ ی ده، داشرف خا ن هجری دفارسي‌شعر یوه کافي برخه دهغه په خطي دیوانونو کي خو ندی ده او که له‌هغو خطي آثارو څخه دهغه دفارسي شاعری برخه ټو له راواخیستلـــه‌شي نود هغه دفارسي شا عر ی یو جلادیوان تری جوړ یدی شي . داشرف خا ن هجری دفارســـــي شاعری دجو نګک په‌تهیه اوخپر یدلو سره د هغه دفارسي شعر په خصو صیاتو په‌بشپړه تو ګه‌دخبرواو څیړ نو امکانات برابریدلا ی شي .

## ۳ ــ د هجری مکتوبا ت :

داشرف خا ن هجری په آثاروکي‌دهغه د((مکتوباتو)) یادو نه هــــم شو یده . دفرا قنا می دچا پ په تعلیقاتو کي هم دهجر ی په‌با ب په‌څیړنه کي لولوچي :(( فا ضـــل‌استاد پو ها ند عبد الشکور رشاد وایي چي دده (اشرف خا ن‌هجری)مکتو بات هم شته )) (۲).

## دهجری ددیوا ن خطي نسخي ،منتخبات او چاپي دیوا ن :

تراوسه پوری داشرف خـــــان‌هجری ددیوا ن شپږ خطي نسخـــي څیړو نکو ته معلو مې شــــــو ي‌دی (۳) دلتـــه به‌یي په‌ډیره لنډه تو ګه دروپیژنو:

---

۱ـ پر «ګلشن روه» دپوهاند‌عبدالشکوررشاد‌سر یزه، پنځه‌اتیایم مخ.

۲ـ فراق قنا مه تعلیقات پنځم‌مـــخ.

۳ ـ دهجری دد یوان د خطي‌نسخو اود هغه ددیوا ن‌دمنتخباتو په‌باب زیاتره استفا ده دکا بل‌مجلي‌ددیار لس سوه شپږ پنځو سم ش کال دپنځمي شماری د(( اشر ف‌خان هجری دیوان )) نو مي‌تحقیقي لیکني څخه شو یده .

**۱ ــ په انگلستان کی :**

دانگلستان په کتابتو نو کی داشرف خا ن هجری ددیوا ن دوه خطی نسخی موند لی شوی دی . لو مړنی نسخه یی په «برتش موزیم» کی تر (دوه زره اواته سوه) لمبـــرلاندی خو ندی ده او بله نسخه یی د کیمبریج پو هنتو ن په کتابتون کی شته ده.

**۲ ــ په پیښور کی :**

په پیښور کی داشر ف خا ن ـ هجری ددیوا ن څلور نسخی پیـــدا شوی دی .ددغه دیوا ن یوه خطـی نسخه دڅار سدی خوا جه محمد خان ختک دپیښور پښتو اکیډیمی ته ور کړی ده اودیادی شـــــوی اکیډیمی په کتابتو ن کی خو ند ی ده. دغه نسخه په یوو لس سوه یو نوی یم هـ.ق کال کښل شوی ده. دپښتنو شعرو نو تر څنګه فارسی اشعار هم لری. په پای کی یـــی کښلی دی:

((به اتمام رسید و به اختتا م انجا مید دیوان میمو ن و مبار ك جد خوانین انعطام فی الانام، زبدةالشعرا ء خان ابن الخان ا بـــن الخان . تاریخ پنجم شهر شعبـــان المعظم ۱۱۹۱ هـ.ق)).

په پیښور کی له دریو نورو خطی نسخو څخه پیاوړی لیکوا ل ا و محقق همیش خلیل دهجـــــری ددیوا ن په چاپ کی استفا ده کړ ی ده. نوموړی لیکوا ل دد غو نسخو په باب وایی :

(( داشرف خا ن هجری د غـــه مو جوده دیوان ما د دریو قلمـــی نسخو نه مر تب کړ و . او له نسخه ماته دګړ هی کپور ه (مردا ن ) ن ولی محمد خا ن سابق ایم.ایل.ای صو به سر حدنه ، دویمه د ((ادبی ټو لنی پیښور دلا یبرر ی اودریمه نسخه د دو ست محمد خـــــا ن کا مل مو مند نه، چی هغه دخا ن بها در محمد رفیق خا ن ختـــــك مر حوم سکنه ، گنبت (ضلـــــع کوهاټ) نه راو ړ ی وه، ماته په لاس راغلی . دغه دری واړه نسخو کی د خدای بخښلی خا ن بها در

محمد رفیق خان ختک نسخه زیاته صحیح او مکمله وه . باقی دوه نسخی نیمگړ ی وی)) (۱).

**دهجری ددیوا ن منتخبا ت :**

داشرف خا ن هجری د دیوا ن منتخبا ت په دغو نسخو او آثا رو کی تراو سه پوری معلوم دی :

**۱ ـ چمن بی نظیر:**

دچمن بی نظیر په نهمه بر خه کی دهجری دوه غز لی انتخاب شو ی دی.

**۲ ـ دحسیب گل میابیا ض :**

دمیا حسیب گل کاکا خیل(دیارلس سوه پنځم هق مړ) په بیا ض کی هم دهجر ی دغز لو ، منتخبا ت مو ندل کیږ ی .

**۳ ـ گلشن روه :**

میجر ها نری جار ج راور تی دگلشن روه د نظم دبرخی په یوسلو یو پنځوسم ـ بو سلو دوه شپیتم مخو نو کی داشرف خا ن هجری ځلیرو یشت غز لی او یوه قصیده را انتخاب کړی دی.

**٤ـ کلید افغانی :**

دکلید افغانی دچمن بی نظیـــرد منتخباتو په بر خه کی داشر ف خا ن هجری یوه غز له هم انتخا ب شوی ده.

**۵ ـ بهارستا ن افغانی :**

قا ضی میر احمد شاه رضوانی د بهار ستان د منظومی بر خـــی په نهمه حصه کی داشرف خا ن هجری داشعارو انتخا ب راو ړ ی دی .

**٦ ـ شکرستا ن افغانی :**

---

۱ ـ دیوان هجری (مقدمه) (ب)مــــخ.

دشکر ستان افغا نی دمنظو مومنتخباتو په دریمه برخه کی هـــم داشرف خا ن هجر ی د غز لو منتخبی بر خی راغلی دی .

**۷ ــ بهار گلشن :**

دبهار گلشن له چاپو نو څخه په یوه چا پ کی دهجر ی د دیوا ن دیر ی زیا تی غز لی انتخا ب شو ی دی.

**۸ ــ جشن نو روزی :**

دجشن نو روز ی په دو همه برخه کی دمتفر قو شا عرا نو د کلام دغور چاڼ تر څنګه داشرف ــ خا ن هجری یوه غز له هم را غلی ده (۱).

همدا رنګه داشرف خا ن هجری دکلام دګلشن روه منتخب راوړنې په سلیکشن فرام ده پویتهـــــر ی اف ده افغا نس او (تر یوړ چچلی پلاوړن) دکلید په تر جمه کی په انګریزی ژ به ژبا ړ لـــــــــــی دی (۲) (۳).

**چاپی دیوا ن:**

دپښتو دکلا سیکو ادبیا تو د لوی شا عر اشر ف خا ن هجر ی ــ ختټك دیوا ن دلو مړ ی ځل له پاره دپښتو دنا متو محقق ، شا عر او لیکوال همیش خلیل په همت ا وسریزه په نو لس سوه اته پنځوسم ع کال کی په پیښور کی چا پ شو .دغه دیوا ن دوه دفتره لری .دهمیش خلیل له مقد می ورو سته اصـــــل دیوا ن له لومړی مخ څخه شرو ع کیږ ی او لومړ ی دفتر په دوه سوه دری پنځوسم مخ کی پای ته رسیږی.

---

۱ ــ کابل مجله ،دیار لس سوه شپږ پنځو سم ش ،پنځمه شماره ځلوریښتوسم ــ پنځه پنځوســــــم مخو نه .

۲ ــ فراقنا مه ، تعلیقات شپږم ــ اووم مخو نه

۳ ــ په نظر کی ده چی دااشرف خان هجر ی ددیوا ن منتخبا ت د هجری ده ړینی ددری سو مټلین په مناسبت دسیمینار له پاره په کابل کی هم چا پ شی .

دویم د فتر یی له دوه سوه اووه-پنځوسم ځخه تر پنځه سوه دو ه اتیایم مخه پور ی‌دوام کوی .وز-پسی دهجری دفارسی کلام د ر ی نمو نی راغلی او په پای کی‌دلغاتو فر هنگ ته ځای ورکړ شوی دی.

دهجری دچا پی دیوا ن په لو مړیو برخو کی قصید ی او غز لی راغلی او په‌پای کی یی قطعا ت او ربا -عیا ت چاپ شوی دی .

که داشرف خا ن هجری ددیوان‌کوم انتقاد ی متن د هغه ددیوا ن له ټو لو خطی نسخو او له چا پی‌نسخی ځخه تهیه شی د هـــــغه‌د کلام ډیره نو ی بر خه به هم‌خپره‌شی ، دا ځکه چی د ښیر ز نکو په نظر ((د هجری چاپی دیوان مکمل‌نه دی اود هجری دکلام کا فی‌برخه په‌کی‌نه ده راغلی ))(۱).

---

۱ - فرا قنا مه ، تعلیقـــــا تاووم مخ.

# دهجری دشعر عمده ځانګړنی

هجری ځکه هومره ناز په طبیعت کا
چی په دهرتر ده نه شته په ګفتار خوږ(۱)

اشرف خان هجری د خپل وخت یو ستر شاعر و . زموږ د کلاسیکو ادبیاتو په تاریخ کی د هجری روهی‌ختټك دریځ د یو لوی شاعر ، یو دردیدلی شاعر او یوه مهجور شاعر په توګه د دغه تاریخ په پاڼو کی په‌زیات درنښت سره خوندی او محفوظ دی ، د پښتو د کلاسیکو ادبیاتو په تاریخ کی که‌له خوشحال خان‌ختټك ، رحمان‌بابا او عبدالحمید مومند څخه‌دپښتو دکلاسیك شعر د دریو ستنو او د عظمت له دریو ټکو او دریو نښو څخه چی دوی د ځانګړو مکتبونو مؤسسین ګڼل شوی ، را تیر شو نو د اشرف

۱ــ دیوان هجری (دری سوه‌اته‌دیرشم) م.

خان هجري شعري شخصيت دلوړي کتار په لوړيو کسانو کې را ځي .

په پښتانه شعرا لومړی ټوك کې د هغه ادبي نهضت په ارتباط چې د خوشحال او د خوشحال د کورنی له خوا را منځته شوی و، داسې لولو :

« . . . تر هجري زرم کال وروسته د پښتو په ادب کې يو لوی نهضت مومو چې لومړی معلم او مؤسس يې نوميالي او ننګيالي سردار مرحوم خوشحال خان دی، او دی د پښتو پلار بللی شو . خوشحال خان د پښتو د ادب پر اسمان لمر ،او دی د خپل ډير مشهور سبك مؤسس دی . ده په پښتو ادب کې يو لوی مکتب پرانيستلی دی چې ډير نوميالي شاگرد د ان ځينی را وتلي دي . . خوشحال خان پخپله يوازی لوړ او ښه شاعر نه و ،بلکه ده خپل زامن او کورنی هم پر ادب روزلی او دشعر او وينا په مکتب کې يې پاللي وه، نو ځکه تر ده وروسته د ده زامن او لمسي او نوره کورنـی ټوله نو ميالي ادبا شو او د پښتو شعر يې ډير لوړ کړ . . . د ده د کورنی نور شا عران او ادبي پيروان هم ډير دي ،چې موږ يې لاندی نومونه اخلو:

عبدالقادر خان ختټك ،اشرف خان هجري ،صدر خان ختټك ،سکندر خان ختټك عيسى اخوند زاده ،خواجه محمد بنگښ ،معزالله او نور . . »(۱)

په همدغه اثر کی د هجري په ار نباط په مشخص ډول کښل شوی دي:

«هجري د خوشحال خان په مکتب کی د عبدالقادر خان ،د خپله وروره سره اوږه پر اوږه دريږی او د دی مکتب له لومړيو شاگردانو څخه دی هجري عشقي ،اخلاقي ،وطني اشعار لري .لکه عبدالقادر خان ډير د تصوف خواته مايل نه دی، بلکه خپل پلار خوشحال خان ته يې شعر نژدی دی.»(۲)

همدارنگه لوی استاد پوهاند حبيبي د عبدالقادرخان ختټك د ديوان په سريزه کې هم د هجري د ادبي شخصيت په باب ليکي :

«د خوشحال خان په کورنی کی د ده دوه زامن په ادب او شعر کی تر

---

۱ــ پښتانه شعرا .لومړی ټو ك.عبدالحی حبيبي .(۲۷ــ۳۰) م ، م

۲ــ همدغه اثر .(يو سلو يو اويايم )م .

نورو ډېر لوړ را وتلي دي ،چې کله کله د وینا په ښیګڼو کې له پلاره سره سیالي نه ،بلکې تر ده لوړ توب هم کوي .دا دوه د ادب ښکلي ګلان او د پښتو د شعر د بڼ خوشنوا خاچوښي (بلبلان) اشرف خان هجري او عبد القادر خان دي .»(۱)

زموږ د کلاسیکو ادبیاتو څیړونکو اشرف خان هجري د خوشحال خان خټك د شعري او ادبي مکتب پلوي او لاروي شاعر ګڼلی دی .د خو شحال خان اغیزه د هجري په ادبي روزنه کې زیاته برجسته او ځلیدونکې ده .استاد پوهاند رښتین لیکي :

«هجري دخوشحال په ادبي مکتب کې د لوړ مقام څښتن دی .»(۲)

یو بل لیکوال لیکي :

«اشرف خان هجري له خوشحال خان نه وروسته له لویو شاعرانو څخه ګڼل کیږي ،چې د ده ادبي مکتب ته منسوب دی .د ده آثار له ډېره پلوه د خوشحال خان خټك سره نژدیوالی لري .په مقایسوي توګه د ده ادبي ایجا دات دخوشحال خټك له ایجاداتو سره د پښتو ژبې د ژورو کلاسیکو ادبیاتو د پیژند لو په لحاظ او د عنعناتو دمهمې مسألې د حل او نوي ادب لــه پاره ،د افغان پیژندنې په پوهنه کې غوره او لوی ګام بلل کیږي .»(۳)

هغه څه چې لوی خوشحال خان خټك پښتو ژبې ته او پښتو ادبیاتو ته ور کړل، نو بې له شکه چې د ده دزامنو او د نورې کورنۍ نقش هم په کې دپاملرنې وړ دی . په لومړي ګام کې خو دا د خوشحال له خوا روزل شوي

---

۱ــ د عبدالقادر خان خټك دیوان د عبدالحی حبیبي په مقدمه او تصحیح .قندهار ،دیارلس سوه اوولسم ه،ش (څوارلسم )مخ.

۲ــ د پښتو د ادب تاریخ .صدیق الله رښتین .کابل ،دویم چاپ دیارلس سوه دوه دیرشم ش .(شپږ څلویښتم)م .

۳ــ خوشحال خان خټك او د ده ادبي مکتب .دوکتور عارف عثمان . (یوسلو نهه ویشتم )م .

شخصیتونه ګڼلی شو او بیا نو دوی‌هم هر یوه یی په خپل ،خپل ځای‌کی او د خپل خپل توان په اندازه پښتو ادبیاتو ته یوڅه ور وبښل.هجری په دی لړ کی د زیاتی یادونی او ستا ـینی وړ شخصیت دی . لکه چی داو- لس مجلی په یوه ګڼه کی لولو :

«د هجری شاعری هم ډیر ځله دخپل نامتو پلار د رزمیه او وطـنی رنګ ډیر لری .د ده دارنګ د عبد القادرخان ترداسی رنګ‌زیات دی.د عبدالقادر خان په‌شاعری کی‌د تصوف عنصر ډیر دی ،نو د هجری په‌شاعری کی ساده عشقی رنګ ډیر دی .دخوشحال غوندی هجری هم د خپل وطن پرکاڼو بوټو مین دی اودهندپر تو له سر سبزی او آبادی باندی دخپل وطن سپیره اووچ غرونه‌او د خـپل‌وطن سوړ باد او سړی او به نه ور کوی .»(۱)

خپله هجری په شاعری کی د خوشحال په استادی و یاړی او تل یی په شعر کی په زیات درنښت سره‌یادوی .دغه څو بیته یی‌له دیوان څخه را اخلو :

. .. اولا به د استاد له حاله وایـم
چی‌یی‌شعر جهانګیر لکه د نمر دی
په پښتو ژبه چی چا شعر بیان‌کړ
دهمه‌و شعر ستوری دی قمر دی
څه خو بی د هغه نمر وایی‌مهجوره
چی‌یی‌نام د هر نیولی سر په سر دی
اوس ن‌یی وایه حقیقت د شاګردانـو
چی هر یوله دی هنره بهره وردی . . . (۲)

که له دی څخه را تیر شو چی‌اشرف خان هجری خټك د خوشحال

---

۱ـ اولس ، خوارلسم کال شپږ ـمه ګڼه .(دوه . ویشتم )مخ.

۲ـ دیوان هجری.(دوه سوه‌شپږ‌څلویښتم او دوه سوه‌ه اووه څلویښتم ) مخونه .

خان ختبك زوی و ، او د هغه له خواروزل شوی دی ،د دغو دواړو نامتو شا عرانو په ژوند کی څه داسی ګډحوادث هم راغلی چی د دوی شعرونو ته یی کله کله او په ځینو مواردو کی‌مشترك خصوصیات ور کړی‌دی .همدا رنګه د ژوند ځینی ګډ خصوصیات‌او ګډ اجتماعی او کله کله سیاسی‌در یځونه د دی سبب شو ی چی دخو شحال خان‌ختبك اواشرف خان هجری ځینی شعری ځانګړ نی ګډ اړخونه‌پیداکړی .

اشرف خان هجری سره له دی چی اوږده کلونه یی له وطن څخـــه لیری د هند په زندانو نو کی تیر کړی دی خو د وخت له ادبی جریا ـ نونو سره یی هم له ډولونو څخه‌پــه یو ډول ځان اشنا کړی او دپښتو نخوا د ځینو نامتو شاعرانو له شعرونـــو سره اشنا بریښی . دهجری په دیوان کی د پښتو د ځینو شاعرانو یادونــه‌زموږ ددی خبری‌ښه څرګندونه‌کولی شی .(۱)

د قلندر په نوم د یوه شاعر یو شعر هم د هجری په دیوان کی را ـ نقل شوی‌او ښکاری‌داسی چی‌هجری ور سره ادبی اړیکی لرلی دی .دغـه قلندر لکه‌چی دقلندر اپریدی ددیوان ښاغلی سریزه لیکو نکی یی لیکی د حمید شاګرد اپریدی قلندر نه دی بلکی بل قلندر دی چی په دکن کـی اوسیده او د هجری معاصر و .(۲) (۳) سکندر خان ختبك هم د هغه په باب ویلی :

دسکندر دقلم خوند یی که ترخوله شی
قلندر به‌خپل قلم په دکن مات کا (٤)

---

۱ــ دیوان هجری .(۲٤٤ــ۲٤۹)م ،م .
۲ــ فرهنګــ زبان و ادبیات پښتو.(۳۸۸) م .
۳ــ د قلندر دیـــوان .سریزه اوسمون د زلمی هیوادمل ،پښتو ټولنه دیارلس سو ه‌شپږ پنځــوسم ش .(۲ــ۵) م ،م.
٤ــ ادبی ستوری .دوهم ټوك(ح) کابل ،دیارلس سوه نهه پنځوسم‌ش. (٤۳) م .

هجری او قلندر یو د بل پهځواب کی شعرونه هم ویلی دی .د وخت ځینو نورو شاعرانو هم دهجری‌دبنی‌شاعری ذکر کړی دی. (۱)

## زندانی غږونه
## زندانی شعرونه

اشرف خان هجری د زندانونو شاعر دی ،هغه د ژوند ډیر کلونه د زندان په تور تمونو کی تیر کړل‌او همدغو زندانونو ،زنځیرونو ،غمونو او تورتمونو د هغه شاعری ته یو ه ځانګړی بڼه ور کړله . داسی چی د هجری شاعری یی ټوله له غم ، دردسوز او سازخخه ډکه کړله .د زندان دغو خاصو حالاتو د هجری ټولـــــه شاعری اغیزمنه کړله او همدغو حا لاتو هغه ته د زندانو نو د شاعـــر ، د دردونو دشاعر او د فریادونو دشاعر نوم ورکړ. استاد عبدالروف بینوا لیکی :

«ځنګه چی د هجری ژوند ټول په ناارامی ، په جګړو ، په زندان او پردیسی کی تیر سوی دی نو ځکه د ده‌شاعری له سوز او درده ډکه ده ،چی دی سوز او درد د ده شاعری ته یوخاص اوپه عین حال کی خوند وره بڼه ورکړی ده .« (۲)

«کلید افغانی »پهسریزه کی‌لولو:

«اشرف خان هجری‌د خپل‌وخت‌منلی شاعر و چی د هغه وخت حالاتو د هغه په شعر کی انعکاس موندلی‌دی او ور پیښ شویو حالاتوشعرته یی یو خاص رنګ ور کړی دی . . وروستی څوارلس کلونه یی دوطن نه لیری دپردیسی پهحال کی‌ددکن په زندانونو کی تیر شوی دی .ددکن

---

۱ــ دیوان عبدالقادر خان ختک‌مرتبه همیش خلیل پیښور نولس سوه اووه شپیتم عیسوی .(۳۰) م .او خوشحالیات .(۳۲ــ۳۳) م ،م.

۲ــ دافغانستان نو میالی ، دریم ټوك .عبدالرؤف بینوا دیارلس سوه شپږ پنځوسم ش .(۲۲۷) م.

په زندانونو کی د روه دغه خوشنوا بلبل په خپله اسیری ، بی وسی او بی ارزی د سوز و ساز ، درد اوگدازنــه ډك شعرونه ویلی دی . کله چی دوطن په یاد او د محبوب په هجران کی یی کومی سا ندی، آهونه او اسویلی کړی دی، هغه د پښتو ادب دترا ژیدی شاعری یوه دردناکه برخه گرـ ځیدلی ده چی د مضمون د دغه درد او سوز سره د شاعری د لفظــی او فورمی کمال د یو ځای کیدو په‌صو رت ،اشرف خان هجری ته د شاعری لوړه درجه حاصله شوی ده .»(۱) د زندان دغه د تور تم بدوشراـ یطو او کړاوونو د هجری په شاعری کی دومره ژور انعکاس کړی دی چی د هغه د ارزښتناك دیوان په زیاترو برخو کی یی په زړه پــــوری نمونی لیدلی شو. لکه چی د هجری د دیوان په پیل کی محترم همبش خلیل لیکی «اشرف خان هجری د خپل وخت هغه منلی شوی شاعر دی چی د ور پیښو شویو حالاتو له اثره د هــغه شاعری یوداسی خاص رنگـ واخیستو چی د هغه نه وړاندی یا کم از کم د هغه ترزمانی دارنگـ په پښتو شاعری کی یاخو بالکل نه واو یاکه و نــــوهم په نیشت برابر و . د هغه ژوند یوه المیه وه او د ژوند یوه لویه برخه یی په قبیلوی جنگو نو او اخری‌تول عمر یی په زندان کی تیر دی .د دکن بیجاپور په زندان کی دروه دغه‌خوـ شنوا بلبل چی پخپله اسیری ، بــی‌وسی او بی ارزی په ژوندون د سوز او ساز ، درد و گداز نه ډك کوم‌اشعار ویلی دی اویایی چی دوطن په‌یاداود محبوب په هجران کی کومی ساندی اهونه او اسویلی کړی دی ، په پښتو ادب کی د حزنیه شاعری یو درد ناك باب دی . »

---

۱ـ کلید افغانی . پادری هیوز دځیړندوی عبدالله خدمتگار سریزه . دکابل چاپ ۱۳۵٦ ش ۸۷مخ.

د زندان په تور تم کې چې هجری کوم دویر، ماتم ،غم او کړاو شعرو نه د خپل زړه په وینو کښلی دی ،دا زموږ په ادبیاتو کی د شعر په تاریخ کی بی جوړی شعرونه گڼلی شی .په دغو شعرونو کی د هجـــری د زړه ربنتینی فریادونه ،د هغه روانی حالات او د هغه دستونزو او ماتم دژوند د شیبو ډیره ښه تصویر گری شوی ده :

گهی آه گهی افسوس گهی درداکړم
کله وا ه کله دریغ کله ویلا کړم
خوب خندا په ما حرام صبرعدم شه
تل ژړا پیهم فریاد کله هاها کړم
چی د زړه لنبه خروج وکا لــه فمه
د لوگی په زلفو پټ مخ د سما کړم
. . گهی ژغ له دوکهه و کړم چی سپهره
زه د ی ولی هونبره لری له اشنا کړم
کاله ور د گیلو پرانیزم لـــــه درده
ملامت واړه ستم د اورنگ شاه کړم
نه د چرخ له دوره خوږ نه می گیله شی
نه دشاه له جوره غم نه یی پروا کړم
چی دایم هیهات کوم روغه عــالمه
د فرقت په توره غوخ ځکه غوغا کړم
کشکی زه هرگز بینا په دنیانه وای
چی په غم د هجر سترگو مبتلا کړم
څو می زړه په وصال خوښ ود یارانو
یو په زر یی هجر سترِی په ژړا کړم
که بیا و کسی هر گز د چا ومخ ته
کسی تور به یی په ستن سره جدا کړم
هغه دم چی می شربت د وصال نوش کړ

شنه فلك د هجر سم لره سزا کړم

گوندی وی گریوان یی ونیسم په لاسو
پرچه ز مکه یی په دم گل لالا کړم

نه‌نه لاس به زما بر په‌هجران‌نه شی
مگر کور یی د سحر په آه صحرا کړم

. . نه نه غم د هجر ډیر دی‌وایه نه شی
حال یی زه په کومه ژبه نن ادا کړم

نه‌به‌هر وینبسته هزار ژبی پیدا کا
نه به ختمه‌دا بی حده ما جرا کړم

. . .د فنا ښادی نصیب شوه‌د کودنو
زه‌هجری د غم وطن چی یی دانا کړم

دهجری هغه شعرونه چی موږته را رسیدلی تر ډیره ځایه یوړی‌د هغه همدغه زندانی فریا دونه گڼل کیږی ،خپه شوی‌غږونه او په ستونی کی بند شوی شعرونه ،د اشرف خان‌هجری دغه ډول شعرونه د جــــدائی هجران ، بیلتون او دغه ډول نوروهفا هیمو یو صا دقانه او د صمیمیــت بیان دی او ځکه خو یی ښکلا او اغیز ئـم ډیر زیات دی د شعر یوه بله نمونه یی گورو چی د ساز غږ هم دغه‌د ماتم په شیبو کی پر هغه ښه‌نــه لگی او همدغه حالت څه ښه بیانوی

رب دی ورك آتشین ژغ د د ی‌سرنا کا
دم په‌دم د مرده غم ر اته احیا کا

په هر لور چی‌یی له قربه مسا فر شوم
را ته‌اور هغه مکان په ژړا بیا کا

بیجاپور لره چی راغلم که مـــی‌غوږ کړ
دالی‌هم‌هغه فغان دی چی یی دا کا

زه لنبه د هجر مړه کړمه پــــه‌اوښکو
دایی بیاراته پو کی سر یی بالا کا

ما په ډېره ناله نو د صورت وچ کړ
لا می‌هم چی بانه وچ وینی غو غا کا

یا جدا ده له یارانو پسی ژا ړی
لا زما به‌حال خبره شوه ژړا کا

چی یی غوږ زه په مضمون دااوازو کړم
واړه یو په یو بیان قضیه زما کا

ما چی راز د حقیقت له نایه‌غوږ کړ
څوك به‌څه رنگ له یاری طمع وفا کا

که یو دم وصل د یار چاته موجود شی
هغه د م یی بیا گردون سره جدا کا

هجری ته بانه وچ مه لره چی‌خوږ یی
ستا په روغږ گړی څه دی که خندا کا

د هجری په دیوان کی‌د هغه دزندانی شعرونو بیلگی زیاتی دی . نکه چی اروانباد عقاب ختهك لیکی :«د هجری کلیات کی یو وافر مقدار د هغو شعرونو دی ،کوم چی ده دقید په ورځو کی لیکلی دی .د دغی نه دا ثابتیږی چی ده که شاعری په‌هر عمر شروع کړی وی خو زور یی هغه مهال ور کړی و چی په ده د غم‌اوری راتیتی شوی دی ،دغه حقیقت ته ده په خپلو شعرونو کی داسی‌اشاره کړی ده :

هجری کله شعر کوی یا یی‌طلب و
له‌غمونودزړه سود په دا کلام کا

تل د غم سوری کوه د غره په‌څوکه
زه مین په‌غریبی مل می اشعار دی »(۱)

کله چی و غواړو د زندان په‌سختیو و او کړا وونو کی دااشرف خان هجری د روانی حالاتو او د هغه په زړه او فکر دغم د بوج جاج ځانته و لگوو ، نو وینو چی هغه له خپل کلی کور او له خپل وطن او له خپلو

۱ــ خوشحالیات .(۲۹ــ۳۰) م .م

خلکو او دوستانو څخه په لیری والی کی له زیاتو فکری کړ کیچونو سره اخته دی .په دی توگه چی دغی جدایی په ژوندونی پر هغه د مرگ څپی را ـ وستی .په زندان کی د هغه د ژوند هره شیبه پر هغه لکه د کال په څیر تیر یږی او داحتمی خبره هم ده:

هجره څه خو فرصت را زړه‌می پاره شو
لاندی ستا د جور تر اره شو
دیارانو جدایی مثال چاړه ده
دزړه سرمی پری قلم لکه تره شو
راشه یو ځل ختنك گوره پـه دکن کی
چی له هجره ډیر ناچیز لکـه ذره شو
هر ساعت یی د ستم په داړو نیسی
دیار یاد لکه لیوه هجری بره شو

که د اشرف خان هجری دغـه روانی حالات او په شعرونو کی یی د هغوی انعکاس په همدغه ډول شرایطو او یادی ته ورته شرایطو کی له څو نورو ،شاعرانو سره پرتله شی نو لیدل کیږی چی هجری هم خپلو دغو حالاتو ته په زیاته هنری ژبه اوشاعرانه ښکلا انعکاس ور کړی دی او دغه پټ فریادونه یی زیات شا ـ عرانه کړ ی‌او له هنری ښایسته یی ډك کړی دی .

په فارسی ادبیاتو کی یو زندا ـ نی شاعر د مسعود سعد سلمان (۱)

---

۱ـ د مسعود سعد سلمان ددیوان سریزه لیکو نکی لیکی چی‌مسعود سعد اصلا له همدان څخه و ، خو نیکونه یی غزنی ته راغلل او د دغه دربار له مقر بینو څخه شول . خپله مسعودد ۴۳۸ ه،ق په حدودو کی د لاهور په ښار کی زیزیدلی دی . د مسعود سعد دژوند ز مانـه دغزنو یانو دشپږو تنو واکمنا نو له واکمنی سره سمون خوری . د سلطان ابراهیم په وخت کی هغه بندی کیږی او بیلا بیلو زندا نونو ته لیږل کیږی .هغه مشهوره کلا چی دی په کی بندی و ،(قلعه‌نای) نومیږی . دهغه‌د زندانی کیدلو بیلا*

په نوم زیات مشهور دی .هغه دغز نوی دربار مد یحه سرا شاعر و او د همدی دربار له خوا د ځینو عوا ملو له مخی بندی شو .هغه په‌بیلا بیلو زندانو نو او کلا گانو کـــی د زندان اوږده کلونه تیر کړی د ی .د ځینو څیړونکو د نظر په اساس هغه ټول (۱۹) کاله په بیلا بیلو زندانونو کی تیر کړل .(۲) د هغه په دیوان‌کی‌دزندان دغوحالاتوځای ځای انعکاس موندلی او دخپل درد اوغم حالات یی ډیر ښه تصویر کړی دی :

چون منی را فلك بیازارد — خردش بیخـــرد نینگارد

هر زمانی چو ریگ تشنه ترم — گرچه برمن چو ابرغم بارد

چون بیفسایدم چومارغمی — بردل من چو مار بگمارد

تاتنم خاك محنتی نشود — بد گر محنتش بسپارد

اندر آن تنگیم که وحشت او — جان ودل راهمی بیفشارد

. . سقف‌این سمج‌من سیاه‌شب است

که دودیده به دو دیده انبارد

. . .شعر گویم همی و اندوه‌دل

خاطرم جز به شعر نگسارد

از فلك تنگدل مشو مسعود

گر فراوانتر‌ترا بیا زارد . . .(۱)

د عمر په اواخرو کی مسعودسعدسلمان له زندان څخه خوشی کیږی.

---

*بیل‌عوامل ذکر شوی دی چی دلته یی څیړل زموږ له‌اصل موضوع‌سره ارتباط نه لری .خو بیا هم د زیاتــومعلوماتو له پاره ، و گوری :

ــ دیوان مسعود سعد سلمان .به تصحیح مرحوم رشید یاسمی .ایران دیارلس سوه نهه دیرشم ش .

۲ــ ددیوان مسعود سعدسلمان. .مقدمه مرحوم‌رشید یاسمی .(ر-یی) م ،م.

۱ــ ددیوان مسعودسعد سلمان .(۱۰٦) م.

د مدحې ځينې غرا قصيدې د هغه دشعر ښې بيلگې دي .لکه چې يوځای لولو :«د مسعود سعد سلمان دشعرونو عمده او اساسي موضوع د هغو پر له پسې رنځونو او سختيو يادونې دي چې د زندان په دوران کې يې زغملي دي .دغه شعرونه د«حبسيات» په نوم مشهور دي او ډير اغيز لري .»(۱)

همدا راز په فارسي ادبياتو کې خاقاني (۲) هغه شاعر دي چې دوخت

---

۱ــ فرهنگ ادبيات فارسي دري دکتر زهرای خانلری کيا .انتشارات بنياد فرهنگ ايران ،۱۳٤۸ ش.ــــــ (٤٦۳) م.

۲ــ په «فرهنگ ادبيات فارسي دري »کې دخاقاني په باب لولو:«افضل الدين ابو بديل بن علي خاقاني د فارسي له لويو وينا والو څخه گڼل کيږي

لومړی يې حقايقي تخلص درلود د «شروانشاه »په خدمت کې يې ډير کلونه تير کړل او د دغې سلسلې د ډيرو پادشاهانو مدحې يې و کښلې. عراق ته د تگ غوښتنه يې وکړه خو اجازه ور نه کړه شوه ،بيا مکې ته د حج د اداء له پاره لاړ په (٥۹٥) کال وفات شوی دی .(۱۸۹ ــ۱۹۰) م ،م وايي چې هغه غوښتل په پټه لـــــه (شماخه) فرار و کړي ،ونيول شو او بندي کړی شو .د شيروانشاه پـــه زندان کې هغه بندي شو ،يو مشهوره «حبسيه» يې داسې شروع کيږي :

فلك کثر روتر است از خط ترســا
مرا دارد مسلسل راهب آسا

تنم چون رشته مريم دو تا است
دلم چون سوزن عيسی است يکتا

من اينجا پای بست رشته مانده
چو عيسی پای بست سوزن آسا

* ديوان خاقاني شرواني به کوشش داکتر ضياءالدين سجادی . ايران . (۲۳ ــ۲۸ )م ،م .

د دربارونو د زندان د زغملو جوګه شوی دی . دخوشحالیات دلیکوال په وینا اشرف خان هجری د پښتو خاقانی بلل شوی دی.

هغه لیکي :«دی (هجری) په پښتو کې اول تن دی چاچې غمجنه شاعري کړی ده او د پښتو خاقاني بللی شوی دی. خود خاقانی د حبسیات نه برعکس د هجری د خپلو خپلوانو او وطن او معشوقو نه د بیلتون غم انګیز ذکر د ده شاعری ته یو امتیازی او منفرد رنګ ور کوی .»(۱)

خپله هجری هم د خاقاني ذکر کوی او وایي :

په اشعار چې د فارسی سخن راني کړم
په لحد کې ارواح خوش د خاقاني کړم

دپښتو ژبې شاعر په زمان کوم دی
چې یې زه په دا هنر د ځان ثاني کړم

یو محقق دخاقاني دحبسیه شعرونو په باب وایي : «هغه چې په هتکړیو او زنځیرونو کې او په خپل قول سره »«د ضحاك په مارانو کې» اسیر شوی و په همدی مناسبت یې یوه مرثیه د «حبسیه» په نوم وکښله. هغه په دغه شعر کې خپل غضب،قهر او نا امیدی په داسی قوت سره توصیف کړی دی چې د «ردینګ د زندان منظومه »یې په پرتله ډیر مملا یمه را ځي :

اژدها خفته بود بر پا یم
نتوانستم آن زمان برخاست

پای من ز کوه آهن بود
کوه بر پای چون توان بر خاست

مار ضحاك مانند بر پایم
وز مژه گنج شایګان بر خاست . . . (۲)

---

۱ـ خوشحالیات .(۳۲ـ ۳۳)م،م.

۲ـ نور و ظلمت در تاریخ ادبیات ایران ، میخائیل .ای.زند .ترجمهٔ ح. اسد پورپیرانفر انتشارات پیام، تهران چاپ دوم ،۲۵۳٦ (پهلوی) .(۱۱۱ ـ ۱۱۲) م ،م .

خو په مقایسوی توگه ویلی شو چی یو خو دهجری د زندان دغه کړا وو نه هم له زغم څخه وتلی بنکاریدل او بله دا چی هغه هماغلته په زندان کی د مرگ تر شیبی پاتی شو . هجری په زندانی تور تمونو کی کله دخپل زړه ویر اوماتم په دو مره اغیزناکه بڼه تصویروی او دومره ویر ور سره ملگری کوی چی د کاڼی زړونه هم نرمولی شی ،او تر ټولو عمده دا چی هجری په زندان کی هم د مقاومت شعرونه زمزمه کړل ،څه داسی شعرونه چی د خپل او لس ویاړونه یی په کی وستایل او د مغولی استبداد په وړاندی یی ټینگار و کړ. هغه په زنځیرونو او زولنو کی هم وویل چی :

خو په تخت باندی قایم د ی اورنگ شاه

په نوکری دی هیڅ پښتون نه کا ویساه

نن آغاز د لسم کال دی باور وکړه

چی په بند کی یی زیریږم بیگناه

**او یا داچی :**

چی یی نن په بنده کاد گرد ون دور

آمان و شه د هر چا له دی نا تاره

چی دی هر عیش بهار په غم بدل کړ

هسی ولی کړی فلکه کج رفتاره

یو فتنه دی او ده نه وی خو د پرسته

لا بتره را ته بله کړی بیداره

لکه زه دی په آتش د جورو ریت کړم

سزا بیا مومی جابره شپږ یاره

په پښتو ادبیاتو کی له هجری څخه وړاندی د هغه پلار نامتو مبارز او شاعر خوشحال خان ختک هم «حبسیات» لری او هغه هم د مغولو په زندانونو کی شپی سبا کړی دی .د دغه دوران په ځانگړیو آثارو کی یی

«فراقنامه» د یادونی وړ ده .پـــــه حبسیاتو کی یی د فراقنامی څو بیتو- نه را اخلو :

که غمونه د دیخپل خا طرکباب کنبم
بویه داچی دفترونه یا کتاب کنبم
په بیان په قصیده به تمام نــه‌شی
که ناسازی د سپهرو د شهاب کنبم
د فرا ق‌غمونه لوړ په لوړ انبار دی
په کاغذ باندی د کوم یوه حساب کنبم
. . که د خوږ خاطر له حاله چاته کنبل کړم
یاآهونه، یا ژړا ، یا به عذاب کنبم
په ډیر غم کی هیڅ خبر نه یم له حاله
چی زه داویل په ویښه که په خواب کنبم
. . ما خوشحال په خوب داحال لیدلی نه و
چی به دا دغم بیتونه په پنجاب کنبـــــم (۱)

خو د هجری حبسیات او زندانی غږو نه یازندانی شعرونه د یوه خاص حالت او ځانگړی تأثیر لرونکی دی. د هجری شاعری او د هغه حبسیا ت به نه یوازی په پښتو ادبیاتو کی‌بلکی په نړیوالو کلا سیکو ادبیاتو کـــی نمونه یی زندانی شعرونه او زندانی‌غږونه و ی. د خپگان ا وماتم دشیبو یو بل تصویر ته هم غوږ کوو :

په مامه کړه ملامت زړه می فگار دی
جدایی ر ا باندی کړی پټ گوزار دی
روغو څه لره بی ځایه پیغور کانی
ستر گی‌ځکه‌ژړا کا چی زړه بیمار دی

---

۱ فراقنامه .خوشحال خان ختك‌سریزه ،څرگندونی او ویي پانگه د زلمي هیواد مل . ۱۳٦۳ ش.متن ـ(۱ـ۲ )م ،م .

دناستی زمکه می هسی اوښکوسره کړه
تـه بـه‌وایی باغ زوولی لاله زار دی
خوبه مه راځه نږدی په کی به‌ډوب شی
ترچشمانومی د اوښکو ښهر هار دی
ما به لاس پوری په ګل د وصال نه کړ
که‌می‌زړه ویل چی یی مل د هجران خاردی
دګور خاوری به یی وران په‌جدل نه کا
مادزړه په تخته نوم کښلی د یار دی
راشه حال د پردیس و ګوره په‌ستر ګو
چی‌بی‌تا نه‌لانری د موی تر تار دی
. . .بیچاپور به هجری ښـه‌کاوه یارانو
دقضا علاج‌پری نه کیږی نا چار دی
د هجری د درد ،سوز اوهجران‌شعرونه د پښتو ادبیاتو دتاریخ ډیری اغیز ناکی او خوږی نمونـــی دی ،ددغو شعرونو په څیړنه او مطالعـه کی د هجری ختهك د ژوند د زندانی‌حالاتو او روانی حالاتو ډیر ښه جا ج اخیستلی شو . دغه زندانی فریادونه‌د پښتو د کلاسیکو ادبیاتو د پاڼو بی ساری نمونی ګڼلی شو .په د غـو فریادونو کی په حقیقت کی هغه د خپل وخت ټول خپه شوی غږونه‌او چت کړی او د خپل عصر او زمان‌د قهر ، غضب او خپګان هنګامی یی‌خپری کړی دی . خو :
ما هجری به شکایت له هجره‌نه کړ
میسر که‌په خواب وصل د اشنا وای
## هجری او تصلف
د اشرف خان هجری په‌شاعری‌کی د تصلف نمونی هم زیاتی دی . تصلف په لغت کی د ځان په باب‌تر ګچی او اندازی زیات ویل دی .(۱)

۱ــ د اشرف خان هجری ادبــی‌تصلفات (باټی) .مونوګرا فـد کابل‌ـ پوهنتون کتابتون .۱۳۵٦ ش کال . (۱ــ۲) م ،م .

د لغاتو په فرهنگونو کی هم تصلف د تصرف په وزن باتو او لافو ته ویل کیږی (۱)

په ادبیاتو کی او په تیره بیا په کلاسیکو اشعارو کی «ادبی تصلف» دی ته ویل کیږی چی شاعر په خپله شاعری ډیرزیات غاور وی اوهغه په یوه وینا «ډیر ځان ستایونکی او په ځان مین وی » (۲).

په نړیوال ډگر کی د ادبیاتوپه برخه کی د شاعرانه ستاینو او تصلف نمونی شته دی.په تیره بیا به نړیوالو کلاسیکو اشعارو کی یی زیاتی نمونی لیدلی شو .په پښتو کلا سیکو ادبیاتو کی هم په مجموعی توگه د تصلف ځینی نمونی شته دی، او موږ دخپلو نامتو شاعرانو په شعر کی په خپل شعر دویاړنی بیلگی لیدلی شو . یوازی څو نمونی یی لولو :

**خوشحال خان ختك :**

په پښتو شعر چی ما علم بلند کړ
د خیبرو ملك می فتح په سمند کړ

**رحمان بابا :**

خوشحالان او دولتامی غلامان دی

---

۱ــ په «غیاث اللغات» کی کښل شوی : تصلف بر وزن تصرف ــ لا ف زدن . . »

ــ غیاث اللغات . د ډیلی چاپ (۹۸) م.

په «فرهنگ عمید »کی لولو : «تصلف : تملق گفتن ، **چاپلوسی کردن لاف زد ن»**

ــ فرهنگ عمید (دوجلدی).تا ــ لیف حسن عمید . **چاپ پنجم ، تهران** ۱۳۶۳ ش .ج،۱. (۵۸۳) م.

۲ــ د اشرف خان هجری ادبی تصلفات (باتی). **(۱ــ۲)** م، م.

زه‌رحمان په پښتو ژبه عالمگیر یم

**حمید مومند :**

چې امسایې د موسې بولــې وګړی

ښایې نن‌ساعت حمید ه ستا قلم

د حمید سوزنده شعر وسوم وسو م

دا‌آوازکاندې رباب له زیرو بمه

**کاظم خان شیدا :**

د سوسن ژبه حیرت کړه سرمه‌سایه

چې شیدا په دا چمن کې سخنګوی شه (۱)

د اشرف خان هجری په دیوان‌کې‌هم داسې نمونې زیاتې دی چې هغه په‌خپل شعر زیات په‌کې‌ویاړیدلی‌دی‌او دخپل شعر او وینا پرله پسې‌ستا- ینه یې کړی ده .

د هغه د شاعری یو خصوصیت‌هم ګڼل کیږی .استاد پوهاند رشتین لیکی :

«. . .هر شاعر چې د خپل‌شعر په نیلی سور شې نو بیا په داســې تیزی دروهی چې‌بل څوك یې تر نظره‌هیڅ نه راځی .هجری هم دشاعرانه غرور په میدان کې تر ټولو غښتلی‌دی‌او بې له خپله پلاره بل څوك د ځان ساری نه ګڼی . . . ا شرف خان‌دځان په ستاینه کې ډیر څه ویلی‌د ی چې په ډیرو ځایونو کې یې دمبالغــې رنګ غوره کړی دی او موږ ور ته‌بې له شاعرانه غرور څخه بله جامه نه‌شو ور اغوستلی . ..»(۲)

کله چې هجری ته په زندان کې یو شاعر ور حاضر یږی او له هغه سره په شعر او شاعری‌خبری کوی‌نو هجری وایی :

ماله شعره شغل کړ په بیجا پور کې

---

۱ـ د اشرف خان هجری ادبی‌تصلفات (باټی). (۲) ،م .

۲ـ وږمه ، ۱۳٤۰ ش ،کال ،اـ ۲ ګڼه . (۳٦ـ۳۷) م، م.

چا وی تالره‌راځی د هند افغان دی (۱)
بل مطلب یی د زړه نه شته بی‌دیدنه
خواهش کاد غزلو نو سخندان دی
وی می زړ یی بړبړ راوله نادانه
د داناسړی مجلس داد دیزدان دی
چی دیدن مو سره و شه پس یی‌ووی
چی‌زبان‌دی په و گړی درفشان دی
وی می ما هر گز اشعار ویلی‌نه‌دی
دا ویناچادرته وی که دی گومان دی
وی یی هومره دروغ مه وایه پړ دیسه
په بنبی‌لاس کی دی بیاض پر کینې هم‌آن‌دی
ماوی گرم ملامت هیڅ نه یـی‌غریبه
عقل هم په‌قدر حال د هر انسان دی
مادرو غویلی نه دی ته غـلطشوی
دانه شعر، نه اشعار ، سحر بیان دی
زه شاعر نه یمه بی شکه سحر گریم
دا بیاض د شعر نه ،د سحر کان دی
هغه شعر چی څوك سحر ورته وایی
تا هرگز لیدلی کله په جهان دی،
که پوهیـږی په اسرار د دی‌ویلو
مادراینبی کتاب واړه په میدان دی
ته‌چی‌پوه په معنونه یی هجر ی‌څه کا
ورشه‌گوره‌هغه شعر چی اسان دی
زموږ دکلاسیکو ادبیاتو په‌شعری دیوانونو کی که د نورو پیاوړو شا ـ

---

۱ــ له دغه شخص څخه منظو ر«قلندر» دی قلندر دهجری‌همعصره شاعر و او په دکن کی یی استوگنه‌لرله .

عرانو په آثارو کی د تصلف نمونی و لرو ، نو د هجری شعری نمونی به په دی برخه کی تر ټولوزیاتی او بر جسته وی .داکار ځینی مشخص علتو- نه لری .د یوه‌لیکوال په قول «دی دختکو دکورنی یو ستر غړی‌اودنوابی‌د خیال سړی و .بل دا چـــــی د ده دشاعری زیاته بر خه په هند کی تیره شوی ده او هلته دده په‌مقابله‌کی نور پښتنا نه شا عرا ن نـــــه وو...))(۱).

سره له دی چی‌اشرف خان‌هجری‌دزندان په‌تور تمو نو او په‌پردیسی کی هم‌د پښتو نخوا له شعــــر ی‌وضعیت څخه لرې و ډیر خبریده.خو داچی اشرف خان هجر ی څنګه پرخپل شعر زیا ت ویاړ ی ، دو ه نورو اساسی ټکو ته هم غور په‌کاردی. لومړی داچی تصلف د خپـــل وخت د شا عری یـــو خصوصیت‌هم ګڼل کیده . داتقر یبا یوه ښکـــلا او یو ډول شا عرانه بیان‌و چی‌شاعر‌څنګه په خپل شعر کی ستا ینـــه سره یو ځای کړ ی . داد کلا سیکی‌شاعری دپیاوړ تیا او توا ن یـــوه بیلګه وه .

بله خبره داده چی د هجری له‌خوا‌په خپل شعر ډیره ویا ړ نه او پرخپل شعر ی دریغ افتخار یــــوروانی علت هم لری . هجر ی له خپلو خلکو ، له خپلو شا عرا نـــواو له خپل کور او کلی اوله خپلی خانی او دبدبی څخه ډیر لر ی د دکن‌په زندان ونوکی بندی‌و . ددی په‌څنګ کی هغه دخپل و خت پـــه‌تناسب په‌رښتینی تو ګه دلومړ ی در جی په‌شا عرانو کی‌حسابیدلو له‌روانی نظره به د هجری حا لا ت خا مخا په‌ز ندانی شرایطو کی داسی‌وچی خپل تسکین او تسل په خپل شعر وکړ ی ،دخپل زړه ټول براس‌په خپل شعر کی راو باسی .داسی ډیر لږ او حتی استثنا یی حالت‌به‌راغلی و ی‌چی چاد هغه شعراوریدلی وی، خو ښ کړی یی‌و ی او هغه‌یی‌په خپل پښتو شعر نازو لی وی.

---

۱ ــ دوږ می یاده شوی مقا له.شپږ دیرشم ــ اووه‌دیرشم مخونه.

داسی په حتی هیڅکله هم نهو یشوی څکه چی هغه د هنددمغولی استبداد پهزندانونو کی دپښتو نخوا یو اسیرشاعر و. چی داسی وه نو په دغه ډول روانی حالا توکیحتمی خبره ده چی هجری دیحتی دخپل شعر دخو ښو نیاوستا ینیپهباب هم تخیل کړی وی او هغهد چا خبره کلهکله دی یی په د ی برخه کی له مبالغیڅخه کـــــا ر اخیستی وی . هجری دزندا نو نو دغه اسیر شاعر ،په څه دا سی روانی حالاتو کی و چی هغه پرخپلشعر زیاتی ویاړنی ته مجبــــو ر شوی دی . په دغه ډول شعرو نوکیدهجری دروانی حالا تو ښه جا ج هم اخیستلی شو . په زندا ن کیدد غهډول روانی حالت راتلل یوه ممکنه خبره ده. دخاقانی په نوم دفار سیادبیاتو یو لوی شا عر دڅو ند یوه برخه پهزندا ن کی تیره کړی ده .موږ دهمدی فصل په پیل کی پریړد هجر ی په ارتبا ط یو لړ خبر یکړی دی، خو هغه هم دڅه دا سی حالا تولاندی را غلی چیپه خپـــلشعر یی ډیرویا ړ کړی دی .دهغه ددیوا ن په سریزه کی دا سی کښلشوی:

((که دخاقانی شعرو نه په غورسره ترمطا لعی لاندی و نیول شی دوه څرگندی څا نگړ تیاو یپه کیراترستر گو کیږ ی . یو تفا خراو بلندنظری او په خپلو شعرو نوویاړدی، او لکه چی لیدلکیږ ی خپــل ځان یی دعر بو او عجمو له ډیر ولوړو شا عرانو څخه هم لـــــوړ گڼلی دی ... ))(١) .

داشرف خا ن هجری په دیوان کید شعری ځان ستا ینی یا اد بــی تصلف نمونی زیاتی دی خو د لتــهدهغه له دیوا ن څخه داد بـــــی تصلف یواز ی څو نمو نی پهپر لهپسی ډول وړاندی کوو :
ـمدت بو یه چی شا عر هســیبیدا شی

١ـ دیوان خاقانی شروا نی . مقد مه داکتر ضیاء الدینسجادی ٣٣ م.

چې ویل هجری ختک غو ند ی مطبـــوع کا

ــ هجری ځکه د معنو افسر پــه سر کړ

چې په رودشعر باندی په‌و پښتنه ځــــی

ــ نه به کانې همه ځو یه دخور شیدشی

نه‌به هرشا عــربنده غو ند ی کا مــــــل و ی

ــ نا قصا ن دشعر و بو لـــــه‌مطر به

ددی رنځ‌یی د هجر ی شعــــر دوا د ی

ــ چا وی شاه دنظم خوك و ینی‌سپهره

لاس‌یی اوږدزما په لورکړ وی یی د ی دی

ــ بل ثانی دجوا ب نه‌و ینی په‌دور

هجر ی‌ځکه په خپل شعر کا پتهــا غ

ــ په‌پښتو ژبه می سیال دشعرنه‌شته

دمعنو پـــه‌جها ن شاه اشر ف ختك یـــم

ــ زه حلال سحر بی شکه پـــه‌اشعار کړم

ځکه هو مره‌په خپل شعر افتخار کـــړم

هر غزل چی می صدور له فکره‌وکا

جوا هرد‌ډیرعالم په‌سر نثـا ر کـــړ م

او همدا راز نور شعرو نه او نور ی‌نمونی .

**هجری او تصوف .**

داشرف خا ن هجری په دیوا ن‌کی موږ داسی شعرو نه نه شو موندلی چی دهغو پر بنسټ هجر ی‌ته یو متصو ف شاعر ووایو.دهجری په اشعاروکی دتصو ف خر گندی‌بیلگی نه‌شته. دپښتو ادبیا تو د تاریخ څیړو نکو هم دا خبره کړی‌ده چی د هجری په آثارو کی‌تصوفی برخه په نشت برابره ده او ځینو بیا ویلی چی دغه بر خه یی‌کمه ده. ((دده ( هجری) په‌کلام کی دتصوف‌برخه کمه ده . دتصو ف په منوره

دنیاکی ځان نه ډوبوی . په د ی‌دنیاکی او سی اوددی دنیا په چاروځان اوجهان خبروی ))(۱).

یوبل لیکوا ل د هجری دشاعری‌دتصوفی اړخ په‌با ب لیکی :

((لکه څنګه چی د مشر قـــــی‌شا عری قاعده ده، یالکه څنګه چی دپښتو دلویو او لو مړ یوشا عرانوطریقه ده ،دو ی‌په څپله شاعری‌کی تصو ف ډیروایی . دتصو ف یوه‌برخه اخلاق هم دی ، نود تصو ف سره سره شا عرا ن اخلا قـــــی‌شا عری هم کوی ... عجیبه خو داده چی هجری دستر خو شحا ل‌اوفقیررحمان دسیمی اودو خت پر شا عر کیدو سر بیره دتصو ف اواخلا قوخواته چندان توجه نه‌کوی اویوازی وباسی ...» (۲). هم هجری دهجرو دو صل او د دمجازی عشق سندری وا یی ...بیانبه مضمو ن یانبه شعــــــر را- دنیا دبی ثباتی په لړ کی کله کلــه

د هجری د دیوا ن دسر یز ی په‌وروستیو کر ښو کی هم په د ی‌باب لولو:

((دهجر ی په کلام کی تصـــوف دنیشت برابر دی .اکثر شا عری‌یی دمینی او محبت ،اخلاق او وطنــــی‌احسا ساتو مرقع ده ». (۳).

همدا رنګه یوبل محقق لیکی: ((څر نګه چی داشرف خا ن پــــه اشعارو کی همد هغه دپـــــــــلارخو شحال خا ن دآثارو په شا ن تصو فی افکار ډیر ښت نه‌لری.زموږپه‌عقیده ددی کار علت دشا عــــــر دکرکتړ په‌څر نګوا لی کی و لټول‌شی .ځکه داشر ف‌خا ن په طبیعت کی دهغه دپلار خو شحال خا ن د آثارو په شا ن تصو فی، جنګــــــک غو ښتنی ، له ژو ندانه سره مینه،دژو ندی زړه او وګړ نیتو ب هڅه،

---

۱- دوږ می مجله یاده شــــو ی‌مقاله نه ده‌دیرشم مخ.

۲- اوالس ، څوارلسم کـــال،شپږمه ګڼه اته‌ویشتم مخ.

۳- دیوان هجری (مقدمه ــ ی)م

ژوندد مبارزې میدا ن ګټل‌اوداسې نور شیا ن اغېز لشوې دی))(۱)
کله چې د هجرې په با بداخبره‌کوو چې دهغه په شعر کې‌دتصو ف برخه نه‌شته او یاکمه ده نومنظو ردادی چې هجری دکومې ځا نګړ ی تصو فې طر یقې یالارې پیرونه‌دی.هغه دکلمې په اساسې او کلې‌ما نا ((متصوف)) شاعر نه دی .
هجری کله کله په خپلوشعرونوکې د دنیا غندنه‌کوې اود دنیا دبې وفایې اوبې ثبا تې سنـــــــدر ی‌وایې:

دجها ن نقش و نګار همه باطل‌دی
فرې بمـــــه‌خور ه په زیـنـت دا ی‌ن‌و آ ن
توبنه کړه دبنه عمل فایده نـه‌کا
پس‌د مر ګه‌بیاد بنه عمـــــــل ار مـــا ن
غنیمت ګڼه فر صت زیر مــــه‌دځان کړه
مرګ رخصت‌دارما ن نه کایو ز مــــــــا ن
دعمل پټې دې توره په ګنـــــاه‌کړه
هجرې وینځه‌یې داو بنکو په بـــــــا ر ا ن

یا داچې:

غم ښادې دجها ن باد ګڼــــه‌یاګرد
په دا نه‌لرې پروا آزا د ه مــــــــــر د
آمد، شد یې، تر سبا هـــــــم‌ګړندې دی
تجر بــه‌مې‌کړه د دور ګر م و ســـــــرد
هیڅ هم سر دزما نې و خوا ن‌ته‌مه‌کړه
یو لقمه‌یې غمه نه لر ی د خـــــو رد
جاجې ناز دزما نې په یــــــاری‌وکړ
په خنــداکې زخم ور کاند ی پــر د رد
غم ښاد ی که‌یې د هو ش یــــه‌نظر ګورې
دبقا عمر یې‌زیات نه دی تـــــــر ورد ...

---

۱ـ خو شحال ختټك او دده ادبی مکتب ۱۲۸م

د هجري په ديوان کې د دنيا دغندنې دغسې نورې ډېرې نمونې هم شته دي او ددغه ډول شکايتونو او غندنو يو علت به په زندان کې د هجري اوږده کلونه کړاوو نه وي او دا بايد دهغو حالاتو انعکاس وګڼل شي چې ديوه فرد په عنوان په ځانګړو حالاتو کې پر هجري راغلي او هغه يې د دنيا د بې وفايي غندنې ته مجبور کړى دى . موږ د کلاسيکو ادبياتو په ډېرو آثارو کې د دنيا د بې ثباتۍ دغندنې مثالونه ليدلي شو .داد موضوع په لحاظ د کلاسيکو شعرونو يو عمده مضمون و، خودا په تصوفي شعرونو کې نه شميرل کيږي . لکه چې د مسعود سعد سلمان د ديوان د سريزې ليکونکي د نوموړي شاعر دد غه ډول شعرونو په باب ليکي:

((... که کله کله يې دوعظ په توګه د دنيا دغندنې اود ترك دنيا او قناعت او نورو موضوعاتو شعرونه ويلي، په وا قعيت کې دا هغه حالات دي چې هر څوك ورسره مخامخ کيدلي شي اودخرقه پوشانو په کتارکې د هغه پر داخليدلو دلالت نه کوي ))(۱)

اود هجري دغه ډول شاعرى ته هم موږ په هيڅ ډول تصوفي شاعري نه شو ويلي . دتصوف په باره کې خبرې اودتصوفي شاعرى په باب خبرې يو جلا بحث دى چې خپل يې يو جلا فرصت غواړي.اشرف خان هجري په لنډيز سره وايي:

دهجري له کفرو شر که بيزار يې ده
امتي دپاك نبي بنده د رب دى (۲)

ددې په څنګ کې کله کله د هجري په ديوان کې د داسې ډول شعرونو نمونې هم وينو چې د يو تصوفي ديد څرګندونه کوي لکه:

يارو ده ته مقرب تر شهرګو نو

---

۱ ـ ديوان مسعود سعدسلمان. مقدمه رشيد ياسمي(نط ـ مقدمه)م
۲ ـ ديوان هجري۴۹۹ مخ.

هجری چیرته‌بیهو ده په عالم ســــــر و

خود غه ډول ځینی شعرو نه ا وبیتونه د استثنا په تو گه دهجری پ‌هشا عری کی راتر سترگوکیږی. خبره داده چی هغه حالات چـــــیٍ د هجر ی په‌ژو ند کی راغل یٍوو نودهغو شرایطو او حالاتو هجو مداسی وچی کولی یی شو ل هجر ی د تصو ف خواته زیا ت متمایل‌کړی. خوداسی ونه شول . هجری سره‌له دی‌چی ځای ځای یی دنیا اوددنیا مینه غندلی ده ، خود هغه دشاعری‌عمده اړخ دهغه دمستی شا عر ی څرگندو یه دی . هجری‌دزندا ن په‌کړاوو نو او تور تمو نو کی هم د عشق شاعری کړی ده ،دو صا ل‌دامیدو نو شا عری یی کړی ده او کله‌کله یی دډیر ی مستی او رندی‌شا عری کړ ی ده:

که‌په‌و هم یی بوسه د زنــــــخوا خلم
پ‌هتش‌فکر یی اخضره گز ید ه شـــی
ددنیا خوار ه همه تری پو ر ی‌هیڅ دی
دسروشو نهو په‌لذت چی مکید ه شـــی
که‌پلو له مخه لری د یــــــد نور کا
یو نگـــاه‌به‌یی رو هی زر خریده شـــی
په صور ت ختهك بندی زړه یـــی‌هوری دی
په هر لو رچی‌بنکلی جو نــــــه شنیده‌شی(۱)

او هغه په‌زندا ن کی هم په د ی‌باب تصور کوی چی :

غمه لری په گریز درو مه لـــــه‌مانه
گنهه اوس به‌دی‌سر غوځ شی تر زما نـــــه
ستا بنیاد یی دبنو په غشـــــی‌غوڅ کړ
برایی په‌خو بـرا غلی وه مستا نـــــه
توری سترگی یی‌لا توری تـــــرکبلی وی
په چهره د گل تر مخ ډیره خندا نـــــه

---

۱ـ دیوان هجری ۱۹۸ م

کجه کجه خمار ی په با لیـــــن راغله
بر ند یستر گی بی د میو له غزا نـــــه
مبارکه داگړ ی میمو نه شپـــــه‌د ه
چی‌دغم‌په‌کور می ته شو لی مهما نـــــه
هغه لار به مصفا کړ م پـــــــــه‌مژ گانو
ته ملو که‌چی پری راغلی له زندانه

درپه در می ستاد حسن جوړه‌غو بنته
دکن کل ځنی‌خالی ت رهندو ستـــــــا نه

او هغه حتی ځوانانو ته هم‌داسی‌پیغام لری:
اوس دی مټ په عیش کا په‌پیری نه‌شی
د هجـــــــری‌ختك پیغام دی په ځوا نا نـــــو
په‌ز ندان کی هم د هجری‌درندانه‌او مستانه مینی داسی بیلگی‌زیاتی
دی.د ز ندا ن په تولو سختیو کی دداسی څرگندو مینو رندانه یاد او
مستانه شا عری د هغه دشعر یـــوجالب خصو صیت دی.

## هنری ارزښتونه، تولنیز دریځونه

داشرف خا ن هجر ی شاعری‌له هنری نظره په خپل و خت کی ډیره لوړه شا عری گڼلی شو .دشعری ارز ښتو نو او هنری ښکلا له‌پلوه دهجری په شا عری کی ډیرنوی او جالب ټکی لیدل کیږ ی‌او دادخپل‌و خت په‌تنا سب دلو ړ ی‌اوخو ږی شا عری نماینده گـــی کوی. دهجری په شعر کی ډیر نوی مفا هیم لیدل‌کیږ ی او همدا راز یی شعر د هنری بیان له پلــوه‌دزیا ت قوت او ښا یست لرونکی دی. (۳مخ)

(( دښکلا او جمال په ستا ینــه‌کی هم هجری ډیره اغیز نا کــه ژبه‌لری . دیار اومحبوب دهراندام‌په صفت‌چی راسه رشی نوله‌خولی

مرغلری دوړوی . ډیری ناآشنـــامگر خوږی استعاری پیدا کو یاو دښکلا پەستا ینه کی دښبا یســـتیوه بله دنیا جوړو ی .
دهجری استعار ی اوتشبیهاتدطبیعت له چوکا ټ څخه دباند ی نەوځی .بلکی په دغه چوکا ټ کیدننه دخبرو ناوی سینگاروی ...
ماته ما ته په لارو لی څـــــیدلبری
مگر زور دیپەتن کا دسر شالونه ...))(۱).
دهجری ختك په شا عری کینوی ترکیبو نه او مفا هیموند ل کیدای شی .
دتخیل لەپلوه هم دهجر ی پەشا عری کی ښی بیلگی شتەدی. پەتیره بیا چی کله هغه په زندانکی دخپلو حالاتو تصو یرکاږ ی. نود غه ډول شا عری یی له هنریپلوه ډیره زیا ته جالبه او لو ړه بریښی . له هنری پلوه د هغه دلوړ تخیل یواز ی د غه څـــــو نمو نی لولو اود هغه په شاعریکید هنری ارز ښت او شا عرانه ښایست او پیاوړ تیا لنـــــډەننداره کوو :
ــ جوا هر به د مغلو نه سیندیوســـی
چیفلك ییروهی واو پەغم سوهانکا (۲)
ــ دهجرا ن لەتاوه آه که هجریوکا
تور لو گیبەیی کاتل په هندوستا ن شپه
ــ هر سا عت یی دستم پەداړونیسی
دیار یادلکه لیوه هجر ی بره شـــــو
او:
چی دزړه لنبه خروج و کا لـــەفمه
دلو گی پەزلفو پټ مخ دسما کـــــــړم

---

۱ــ وږمه ،۱۳٤۰،۱ــ۲ گڼه ٤٦ م.
۲ــ دیوان هجری دیارلسم مخ.

دهجری په دیوا ن کی لههنری‌اوشعری پلوه نوری ډیری‌ښکلاوی اودیادو نی‌و ړتکی هم شتـــه د ی‌چی دنمو نی لهپاره یی دهغـــهد شعری تخیل همد غه ځوبیتو نه‌اوشعرونه کا فی ګڼلی شو .

دمحققینو په‌نظر دهجری پـــه‌دیوا ن کی له عرو ضی پلوه کله کله ځینی نیمګړ تیاو ی لید لی‌کیږی (۱) چی د لته پری له زیاتو خبرو تیریږو.

خو راځو دمحتوی اومو ضو ع‌له‌نظره دهجری دشا عر ی یوځو عمده برخو ته اود هجری په شعرکی ځینو ټولنیزو ارز ښتو نو او ټکو ته.

دمو ضوع او محتوا له پلوه دهجری په‌شعر کی ډیر مسا یـل نغښتل شوی دی:د خپل ځـــان‌ځانګړ ی‌حالات ،دزندا ن فریادو نه، دوطن یاد، عشق ، رندی او ځینی‌ټولنیز اواخلاقی مسایل .لکه چـــی مخکی موهم اشاره‌ور ته کړ ی د ه‌داشرف خان هجری دشعراسا سی مضمو ن زندانی فریادو نه دی اودبیلتون او هجرا ن‌یادو نه .داځکه چی داد هجری دژو ند ډیره عمده‌مساله او حادثه ده .له دی ځخـه چی راتیر شو ،دهجری‌په شعر کی‌له‌خپل وطن سره مینه ډیره‌ځلیدو- نکی ده.له‌کلی ، کور او وطـــن‌ځخه لیریوا لی اودوطن یاد د هغه‌په شعر کی په‌ځپو دی:

که نصیب بنده بند کړ ی پـــه‌دکن دی
دا منګیریی همیشه عشق دو طـــن د ی
ښادی ځه ته عالم وایی خبر نه‌یـــم
تل ژړازما ریا ض غم می چمـــن دی
چی دعشق په‌توره مړ کفن یی‌نه‌شته
کله رو غ دپاك شهید نو ی کفـــن دی

۲ ــ دډیر محترم استادپوهاند عبدالشکور رشاد یاد داشت.

دزړه باز یی تل دروه پهز مکه‌گرځی
که هجری په‌دکن ناست خا لی بـــد ن دی
یاداچی:
تش صور ت دختك شته پــه‌بیجاپور کی
تل‌یی سیرپوری کاند ی تر اهـــك رو ح
او:
زه هجری دایم هو س د خپـــل‌وطن کړم
بیجاپور که‌هر ځو ښه داور نگشـــاه دی
او په‌یوه ځاوریزه کی بیاد وطن‌ارمان داسی کوی:
دریغه او لیدا ی د ر و ه‌ملکو نه
په حیا تروغ شوا ی دزړ ه زخمو نـه
پیری یی راغله هجری بــــــه‌بوزی
هوری چی‌لاړل همزو لی ملو نـــــــــه
دهجری په شا عری کی دو طن‌په‌یاد او ارما ن ډیری اه سوز ا و سازه ډکی نمونی شته دی . داد هجری دشاعری یوه په زړه پوری برخه ده.
کومه بله خبره چی د هغه پـــه‌شعری ځانگړ نو کی دپا ملر نی‌وړ ده، هغه داده چی دځینو نو ر و ټولنیزو مسایلو انعکا س هم په‌کی وینو. دننگ ،لوړ همت ، پــــنت،وفا اود خپل وخت دځینو نو ر و اجتما عی اواخلا قی مسا یلـــــوخرگندونی په‌ک ی‌لیدلی شو . له دغو برخو څخه یی یواز ی‌څونمونی‌په مشخصو برخو کی راوړو:
پت.
څوك چی هیر دیارنصیحت کا زما نه واړه پری ملا مت کا
دخدای رحمت شه‌په هغو باندی که ډیر ضروروی نظرپه پت کا

**ننګ:**

ښوك چې مري د ننګ په كاركې سعادت دى
هر چې وتښتي له دې كاره ملامت دى
عزت ګرځي هم هغه په دنيا غواړي
چې نيو لى يې دا من د لوى همت دى

يا:

په دنيا چې چير ي دور ننګ دى
وا ړه سپي دسړ يو په ر نګ دى
سړى هغه ګڼه په دانا بوده
چې په ضرور كې ولاړ په ننګ دى

**وفا:**

هجرى لار دو فا مه پرېږ د ه ډاډه شه
كه د ىږدى فلك په سر دعذاب غرو نه

داشرف خان هجر ى په شا عرى كې يوه بله مو ضوع زياته جالبه ده. هجرى دزندا ن په د غوسختوشيبو كې دسبا په اميد دى . د تورتم په دغه غمجن چاپير يال كې درڼا هيله من دى اودما تم ا و هجرا ن په دغو لړو كې دبناد ى اووصال په اميدو نو ژ و ندى پايى. داد هجرى دشعرو نو يوه په زړه پور ى مو ضوع ده. سخته ده چې په هغسى له كړاو ه ډ كوحالاتو كې دى يو اسير شاعر له داسې اميدو نو سره ژو ند وكړى.دهجرى په شعر كې دغسې اميد ى شيبې زياتې ځليدلى دى لكه:

كه هرڅو دغم وريځو تار يكى كړه
دكرم قمر ته ګور م په او رو كى
هجرى صبر وسيله د را حتو نو
دز حمت علاج دى نه شته په ګيلو كى
ــ زړه بښه ډاډه كړه هجر ى محزو نه





آ خربه تیر شی دا سا عتو نـــــه
خوشی دو صل که دو را ن ر ا نیوه
همیش به نه‌و ی هجرا ن غمو نـــه (۱)

هجری له همد غو امیدو نو سره‌مصروف دی. هغه هره شیبه دزها هیله کوی .داد هغه دزړ ه غوښتنه‌ده اودی له همد غو حالا تو امید ی شعرو نه جوړوی :

که وماته شوه درازه دا حزا ن شپه
و هیچاته‌پیښه مه شه هسی شا ن شپه
زړه آخر به‌نهایت شی همت لوی‌کړ ه
که لیده به‌سترګو نه شی دیا یا ن شپــه
که هرڅو عالم په توره خیمـــه‌پټ کا
ولی بــی سحره نه‌و ه په جها ن شپـــه
البته به نمرد وصل جلوه‌ګرشی
په چاکله‌پاینده وی د هجرا ن شپـــه
هغه ورځ چی د خوشی وه پاتونه شـــوه
تل‌به هم قا بمه‌نه‌و ی د ار ما ن شپـــه (۲)

داشرف خا ن هجری ختـــک‌شاعری زمو ږ دکلا سیکو سمسورو ادبیاتو یو جالب څپر کی دی.دهغه‌په‌شعر کی نه‌یواز ی دا چی دهغه‌د ژو ند ځا نګړو حالا تو ډ یـــرښه او صاد قانه انعکا س‌موندلی د ی،بلکی د هغه دشعر په مطا لعه‌اوڅیړ نه کی د هغه زمان ډ یرجالب ټکی موږ ته راڅر ګند ید لی ا وروښانیدلی شی .
دهجری شعر دهغه دژ وندډیره‌ښه هینداره ده اود هغه دڅیـــری دلیدلو په څنګ کی،څیړو نکی‌کولی‌شی د هغه و خت داجتما عـــی‌او تاریخی حالاتود ډیرو اړ خو نو په‌باب هم‌ځا نته تیاره ګوتو نـــه روښانانه کړی .

---

۱ــ دیوان هجری پنځه سوه‌دوه‌اویایم مخ.
۲ ـ همدغه اثر شلور سوه ـ شلو یښتم مخ.

